شمارہ نمبر ۱: ۲۰۲۱

# ادبیات خیبر پختونخوا





اکادمی ادبیات پاکستان

Scanned by CamScanner

# ادبیات خیبرپښتونخوا

شمارنمبر1، 2021



## اکادمی ادبیات پاکستان

اشاعت کے لئے اپنی تحریں، جو کاغذ کے ایک طرف صاف لکھی ہوں، "مدیران ادبیات" کے پتے پر ارسال فرمایئے۔ براہ کرم اپنے مضمون یا غزل کی ایک نقل اپنے پاس ضرور رکھے۔



مجلّے میں صرف غیر مطبوعہ تحریریں شامل کی جاتی ہیں اور ان کی اشاعت پر شکریے کے ساتھ بطور قلمی معاون ایک اعزازی کاپی ارسال کی جائے گی۔



مطبوعہ نگارشات کے نفس مضمون کی ذمہ داری کلی طور پر لکھنے والوں پر ہے۔ ان کی اراء کو اکادمی ادبیات پاکستان کی رائے نہ سمجھا جائے۔


——— اندرون ملک ———

——— غیر مجلد قیمت: 150 روپے ———

مجلد قیمت: 160 روپے

——— بیرون ملک ———

قیمت: 40 امریکی ڈالر

تزئین وطباعت
خان بادشاہ نصرت

ترسیل واشتہارات
محمد علی صابر

## ناشر: اکادمی ادبیات پاکستان خیبر پختونخوا

ائیجڈ ڈیپارٹمنٹ کمپلیکس بلاک ۱۵، خیبر روڈ پشاور۔۔۔۔۔۔فون نمبر 091-9211139

طبع: اعراف پرنٹرز محلہ جنگی، پشاور

بسم اللہ الرحمن الرحیم

پیشِ نظر کتاب ہمارے واٹس ایپ گروپ کے سکالرز کی طلب پہ سافٹ میں تبدیل کی گئی ہے۔ مصنفِ کتاب کے لیے نیک خواہشات کے ساتھ سافٹ بنانے والوں کے حق میں دعائے خیر کی استدعا ہے۔

زیرِ نظر کتاب فیس بک گروپ "کتب خانہ" میں بھی اپلوڈ کر دی گئی ہے۔
گروپ کالنک ملاحظہ کیجیے :

https://www.facebook.com/groups/1144796425720955/?ref=share




میر ظہیر عباس روستمانی

03072128068




# فهرست

جناب شفقت محمود

وفاقی وزیر برائے تعلیم و پیشہ ورانہ تربیت،

قومی ورثہ و ثقافت ڈویژن پاکستان،

## وفاقی وزیر جناب شفقت محمود کا پاکستان کے تمام صوبوں سے "ادبیات" کے شماروں کے اجراء کے موقع پر خصوصی پیغام

اکادمی ادبیات پاکستان کے زیر انتظام پہلی بار تمام صوبوں سے 'ادبیات' کے شماروں کا اجراء ایک نہایت خوش آئند منصوبہ ہے۔ خوش گوار بات یہ ہے کہ ان پرچوں میں پاکستانی زبانوں کا ادب ان ہی زبانوں کے رسم خط میں شائع کیا جارہا ہے۔ ایسا منفرد اشاعتی منصوبہ جاری کرنے پر اکادمی داد کی مستحق ہے۔

یہ منصوبہ لسانی و تہذیبی ہم آہنگی کو تقویت دینے اور زبانوں کو ایک دوسرے کے قریب لانے کی طرف ایک نہایت مؤثر اقدام ہے۔ ساتھ ہی ساتھ ملکی ثقافتوں اور زبانوں میں موجود حکمت و دانش کی روایت سے براہ راست استفادے کی ایک کامیاب کوشش بھی ہے جو رواداری، محبت اور یگانگت کے پیغام کی حامل ہے۔ پاکستانی زبانوں میں بکھرے ہوئے ان حکمت و دانش کے موتیوں کو ایک لڑی میں پرونے کی ضرورت ہے جسے اکادمی ادبیات پاکستان کا زیر نظر اشاعتی منصوبہ کما حقہ پورا کرتا ہے۔ یہ اشاعتی منصوبہ پاکستان بھر میں لکھنے والوں کو قریب لانے کے عمل کو بھی تقویت دے گا اور ان کے لئے ایک دوسرے کو جاننے اور سمجھنے کے مزید مواقع پیدا کرنے کا باعث بنے گا۔ تاریخ گواہ ہے کہ کسی ملک کو ترقی کی دولت تب تک نصیب نہیں ہوئی جب تک کہ اس نے اپنے اہل قلم طبقے کی فلاح، فروغ، ملکی ثقافتوں اور زبانوں کے لئے ترقی کی راہیں نہیں کھولیں۔

پاکستان کے تمام صوبوں سے علیحدہ علیحدہ جریدوں میں مختلف پاکستانی زبانوں کے ادب کی منتخب تحریروں کی اشاعت سے ملکی ادبی منظر نامے کی جامع تصویر سامنے آتی ہے اور یہ اندازہ ہوتا ہے کہ لسانی اور ادبی سطح پر ہمارا ملک کیسا خوش رنگ اور ہمہ جہت ہے۔ بہت ضروری ہے کہ ان رنگوں اور خوش بوؤں کو ہر سُو پھیلایا جائے، تاکہ معاشرتی گھٹن کا خاتمہ ہو، مکالمے، آپسی افہام و تفہیم اور ہم آہنگی کی فضا کو تقویت ملے، بنیادی انسانی اقدار کو فروغ حاصل ہو اور ادبی سطح پر مزید ثقافتی اپنائیت پیدا ہو۔

میں خلوص دل سے چیئرمین اکادمی ادبیات پاکستان ڈاکٹر یوسف خشک کی ملکی ثقافتی اور ادبی ترقی کے لئے کاوشوں کو سراہتا ہوں اور ان کے جاری رہنے کی اُمید کرتا ہوں۔

نیک خواہشات کے ساتھ

(شفقت محمود)

# حرفِ اول

اکادمی ادبیات پاکستان کی جانب سے "ادبیات خیبر پختونخواہ" کا یہ پہلا شمارہ پیش خدمت ہے۔اس سلسلے میں ہماری ہمیشہ کوشش رہے گی کہ خیبر پختونخوا سے تعلق رکھنے والے تمام زبانوں کے اہم شعراء و ادبا کا کلام، افسانے، کہانیاں، تحقیق و تنقید، سفر نامے اور دوسری تخلیقات شامل ہوں۔

اس شمارہ میں پشتو، ہندکو، سرائیکی اور کھوار زبانوں کے ادب کو یکجا کر دیا گیا ہے یقیناً یہ بات اکادمی ادبیات پاکستان کے لیے باعث افتخار ہے کہ بہت مختصر وقت میں ایک ایسے ادبی شمارے کی اشاعت ممکن بنائی گئی، جس کی کمی ایک عرصہ سے محسوس کی جا رہی تھی۔

خیبر پختونخوا کا محل وقوع کچھ منفرد سا ہے۔ بیشتر علاقہ پہاڑی ہے۔ یہاں کے لوگ محنتی اور جفاکش ہیں۔ یہی وجہ ہے کہ اس خطے کے اہل قلم کی تحریروں میں جہاں اپنے پہاڑوں، آبشاروں اور میدانوں کی بڑی خوبصورت انداز میں منظر کشی موجود ہے۔ وہیں کسی حد تک مزاحمتی رنگ بھی پایا جاتا ہے۔ زیر نظر شمارے میں ہم نے ان تمام رنگوں کو یک جا کرنے کی کوشش کی ہے۔

اگر ہمیں سالنامہ "ادبیات خیبر پختونخواہ" کے سلسلے میں اپنے علمی، ادبی اور ثقافتی حلقوں کی طرف سے پذیرائی ملتی رہی تو ہم اس کی مزید بہتری کے لئے بھی کوشاں رہیں گے اور اس میں زیادہ سے زیادہ اعلیٰ معیار کا ادبی مواد قارئین ادب کی خدمت میں پیش کرنے کی کوشش کریں گے۔ یہ ہماری پہلی کاوش ہے اس لئے بہت سے لکھنے والوں کی تحریریں بر وقت نہ ملنے کی وجہ سے شمارے میں شامل ہونے سے رہ گئی ہیں، ایسے تمام اہل قلم سے گزارش ہے کہ وہ اگلے شمارے کے لئے ہم سے تعاون کریں۔

اکادمي ادبیات پاکستان

اس سلسلے میں ہم اکادمی کے بورڈ آف گورنرز اور اس رسالے کی مجلس ادارت، مجلس مشاورت کے ساتھ تمام تخلیق کاروں کا، جنہوں نے صوبہ خیبر پختونخواہ سے شائع ہونے والے اکادمی کے اولین شمارے کے لئے ہمیں بروقت اپنی تخلیقات فراہم کیں ان تمام مہربانوں کا تہہ دل سے شکریہ ادا کرتے ہیں جن کی رہنمائی و تعاون کے بغیر اس شمارے کا بروقت اجرا ممکن نہیں ہو سکتا تھا۔

اکادمی ادبیات پاکستان صوبہ خیبر پختونخواہ کے اسسٹنٹ ریذیڈنٹ ڈائریکٹر خان بادشاہ نصرت اور ان کی ٹیم مبارک باد کی مستحق ہے جنہوں نے بڑی محنت اور لگن سے یہ منصوبہ بروقت پایا تکمیل تک پہنچایا۔
یہ ابتدائی کوشش ہے اور اُمید کی جاسکتی ہے کہ قارئین کرام ہماری اس کوشش میں بہتری لانے کے لئے اپنی تجاویز سے نوازیں گے۔

ڈاکٹر یوسف خشک میریٹوریس پروفیسر

چیئرمین

# الواحد

پروفیسر ډاکټر اسلم تاثیر

ما په سر سترګو منلے دے، رب یو دے
په زړګي کښې مې لیکلے دے، رب یو دے

بس په دې ئې فیصله ده بله نۀ شته
په هر څۀ کښې مې لیدلے دے، رب یو دے

دا منم چې هغه یو دے الواحد دے
په قرآن کښې چې ستائیلے دے، رب یو دے

تل ئې لوله ویره ترهه به دې نۀ وي
د بړو خلقو ازمائیلې دے، رب یو دے

د تاثیر په زړۀ کښې بله مینه نۀ شته
چې په زړۀ کښې ئې ساتلے دے رب یو دے



# نعت

منظور چشتي اپريدے

پـــه تـــا ســــلام آخــــر زمانـــه نبـــيﷺ
تـــا نـــه قربـــان پـــه الله ګرانـــه نبـــيﷺ

چـــې تجلـــې دې راښـــكاره شـــوې د نـــور
دواړه جهانـــــه شـــــو روښـــــانه نبـــــيﷺ

تـــهٔ د حســـنؓ او د حُســـينؓ مينـــه ئـــې
د فـــــاطمېؓ د زړهٔ درمانـــــــه نبـــــيﷺ

ځلـــور يـــاران درنـــه چـــاپېره ســـتوري
پـــه مېـــنځ كښـــې تـــهٔ مـــاهِ تابانـــه نبـــيﷺ

تـــاج د لـــــولاك الله دركـــــړے تالـــــه
پـــه انبيـــاؤ كښـــې ســـلطانه نبـــيﷺ

ئـــې د علـــيؓ د ســـترګو تـــور حضـــرته
د امامـــــانو قدردانـــــه نبـــــيﷺ

منظـــور چشـــتي ســـائل دا ســـتا د در دے
ســـتا خزانـــه ده فـــيض رســـانه نبـــيﷺ

*

# نعت شریف

عبدالواحد واحدي

ته دعا ابراهیمي ؑ ئې محمدهؐ
ته دعا د لوے نبي ؑ ئې محمدهؐ

بې مثاله معیاري ئې محمدهؐ
بې مثاله کرداري ئې محمدهؐ

ټول عرب به قدرومه انشاء الله
ځکه ته خو عربي ئې محمدهؐ

برتري ده په تقویٰ مسلمانانو
څه عجب شان ګفتاري ده محمدهؐ

جنتي شول ستا منونکي قریشیان ټول
په نسب خو قریشي ئې محمدهؐ

محمدهؐ ستا غلام دے واحدي ستا
د خوارانو امدادي ئې محمدهؐ



# اتبار

"افسانه"

بخت روان عمرخیل

د حاجي شمروز په خوا خاطر کښې هم نهٔ راتلهٔ چې ګني هغه دې په خپل ژوندانه د خپل دشمن د مرګ زېرے واوري. د هغهٔ زړه او ذهن دواړو په پوره توګه قبوله کړې وه چې هغه به د ن. ري د ژوند پېغور تر ګوره ځان سره وړي۔

که په ځوانانو وے او که په نوکر فقیر او که په ملاتړ او ډله پره ، په هر جوړ د شمروز تله په نادري ډېره درنه وه، خو نادرے چې څومره مکار او چالاک سړے وو نو دغه چل د حاجي صیب نه وو زده - د دشمنې په اور کښې د دواړو غاړو نه لویه مرګ ژوبله شوے وه- خو نادري به د پیسو ټکو او تانې تحصیل نه کار اخستو او حاجي صیب خپلې متې پکارولې - که په شمار وے د نادري د ډلې زیاتې جنازې اوچتې شوې وے - خو د هغه د خپله کوره یو هم نه وه وتې -

په ټوپک مارو او اجرتیانو او کوټه سرو د حاجي شمروز خوا چرته سړیده؟ تر څو چې ئې دده ناوے کونډه کړې نهٔ وه- ځکه چې د هغه په کاله دننه دوه کونډې ناستې وے. حاجي صیب به د هغو ځلمو بچو مرګ دومره نه ژړو لکه څومره چې به ئې د نادري ژوند ژړو - کله کله خو به ئې ددغه غم او زغم د لاسه ډېرې اوتې، بوتې او آپلتې هم شورو کړے- خو ډېر زر به ئې ځان قابو کړو او په استغفار به سر شو- زاري به ئې کولې چې " یا اللّه تهٔ ډېر لوے ذات ئې - زه ډېر عاجز یم - ما معاف کړے- خو نادرے راله یو ځل خامخا په لاس راکړې- زړه ئې راله سیزلے دے- د هغه دعاګانې به هم داسې وے لکه د چا چې په چا زور وي - وې به ئې خدایه

پاکه بچي خو مې هم نیشته چې د هغوي دپاره درته لاس پورته کړم- د ځان دپاره درنه هم څه نه غواړم - خو بس دغه یو سوال مې دے- هغه هم اوس وایه که پوره شي - دعا به ئې هم په داسې ځاې ختموله چې په مخ لاس راښکل خو څه کړې چې د آمین ځاې به ئې پکښې هم پرېښې نه وو- لکه چې وائي چې کوم څیز دې په اخلاص سره اوغوښتو نو د هغې د حصول دپاره به درسره ټول کائنات مرسته کوي -

بې شکه چې د دشمن نۀ لیدل به اختر وي - خو د چا دپاره - حاجي صیب خو به چې لاس پورته کول نو اول به ئې د نادري د لیدو سوال کوو - چې خدایه یو ځل خو ئې راته مخامخ کړې - صرف یو ځل - خیر دې په ما دې مخکښې شي ، خو چې مخې له راشي"

هم دغه یقین او اخلاص د غریبو ډکې دعاګانې وے چې نادرے د حاجي صیب او د زرې لاندے راغے، او خوا ئې پرې ښه سمه یخه کړه-

حاجي صیب ډیر نیک او ساده ، باده معتبر پښتون مشر وو- په ډیرو نه پوهیدو - نور ئې څه زده وو او کنه ، خو پښتو ئې ډیره ښه زده وه - په پښتو کښې د پختو ماتیدو قائل وو- ټول ژوند ئې هم د دې فلسفې لاندې تېریدو - عن تر دې چې دشمني ئې هم د پښتو د خاطره خپل کور ته را ننه اېستي وه - د جمدر خان قاتل چې د شمروز خان په حجره راننوتو او ټوله قیصه ئې ورته تیره کړه - نو نۀ ئې یواځې ورله پنا ورکړه - بلکې زړه ئې ورله هم ډیر غټ کړو - وې دلته کینه - خوره څکه - د هیڅ خبرې پروا اونۀ کړې - څوک دې رانه نوک هم نه شي ګره ولے - غیرتیان خو د خدا ے هم خوښ وي - الله به دې ساتې - تا څه بد کار نه دے کړے - دا د پښتو ملک دے - او پښتانه په دې خبره ځان هم وژني - او د بل ککرۍ هم خوري - ټیک ده چې جمدر زما عزیز دے - که داسې سړے د چا پلار هم وي نو پرېښودل ئې نه وي پکار- دا د دشمنۍ هغه سبب وو چې خپله

خونه ئې پرې خو تاله ترغه کړه ، ولے د پښتو روایات ئې ژوندي او ساتل - د بدنامۍ او تور په مرګونو څوک دشمنۍ نه پالي- ځان پرې ناغرضه کوي- له ځانه ئې هیره وي - په ډېره ئې هم نه اړه وي - خو خدا ے خبر چې نادرے د کومې ختې جوړ ؤو - چې د پلار په هیر تیر مړي ئې سر دوباره د قام لعنتونه کېښوده؟

حاجي صیب د ډیر عجیبه طبعیت خاوند وو - هره خبره ئې بل شان وه - ډیر شور شغرب قار قور به ئې هم کوو - خو ټول خلق ورسره آموخته وو - په کنځلو وئیلو سپکو ، سپورو او قار غصه به ئې هډو د چا پروا نه وه - دا هم د هغه د مینې یو انداز وو - البته خندا ئې د یرې وه - یو خاص قسم خندا چې به پرې راغله - نو ښځو ، نرو څه چې لویو ، ورړو به ترې بیا ډېره کوله - دومره کلک سړے وو چې تا به وے چې ژړا خو به ئې چرته په ځانګو کښې هم نه وي کړي ، خو په خندا کښې ئې سترګې راډکې دي - د ډیرې بې وسئ او سوخته او یا چرته په ډیره ناشونې او ناوړه خبره به ئې په کړس، کړس خندا کوله-

نن هم په حاجي صیب د خندا دوره راغلې وه - د حجرې یو سر او بل سر له به تلو او راتلو- په خندا، خندا کښې به ئې خدا ے خبر څه کرل، ریبل؟ چې څومره د هغه خندا زیاتیده دومره د ماحول په دهشت کښې اضافه کیده - ټوپک ئې ګس لس ته کړۀ، او اکرام کاکا ته مخامخ شو، اکرام کاکا نوکر نه بلکې د دوستۍ او ورورۍ په مقام ولاړ وو ، وے " اکرم خانه! خدا ے شته چې ځان راته ډیر بد ښکاریدو چې کله مې په دې سپي پسې ټوپک ته لاس کول - ځکه چې هغه د بچو په همځولتیا کښې وو - خو بله لاره راسره نه وه - خو ته ده ته وګوره" - حاجي صاحب په حجره کښې ناست دریم کس ته اشاره وکړه - څومره لوے کار ئې کړے دے- د عمر غم ئې راله غوخ کړې دے - زړه خو مې غواړي چې په جائداد کښې ورله

د یو ځوي برابر حصه ورکړم - خو چې دې کار ته ئې وګورم ، نو وایم چې دې مې هم د نادري سره سم کړے وے - اکرم خانه داسې کار ئې کړې دے- لکه ته چې زما لار په چا اونیسې - ټیک ده زما خو دشمن وو - ما خو په هیڅ جوړ نه پرېښودو- خو د خدائے ظالمه! ستا خو ډیر اتباري ملګرے وو- ته خو د هغه نوکر نه وے د هغه دوست وے - ماته ښه پته ده ستا د کور هر ضرورت به نادري پوره کوو- نو بیا تا ولے داسې اوکړو؟ په اتبار کښې دې راله ګزار راکړو؟" حاجي صیب ورته د کټ په بازو ښپه اېښې وه، او دومره ورته راټیټ شوے وو - چې د خولې پشم ئې په مخ پریوتو- منګولې ئې رو، رو په ټوپک کلکیدې -وے " په ما خو سترکې پټې وے- ګنې خدائے راستي که داسې مې لګیده - ما خو وے چې په سور میدان کښې به ئې دا سر الوزوم- خو دوستانې دې له راغلې، اکرم خانه! دې له"- حاجي صیب په شا واوړیدو- اکرم خان پرې ښه پوهه وو- خو بیا ئې هم ورله فتحه ورکړه - وے " حاجي صیب ته ټیک وے- د دۀ نه خو ئې هغه ښځه غیرتي ده - کور کښې ورو خبره کوله چې نادري پسې خپلې ناوې دومره نه ژړل . لکه دده ښځې چې ځومره ویر کوو- وے د ټولو خلقو ورته پام وو -"

دا خبره څه وه چې د حاجي صاحب رنګ یک دم بدل شو- د وجود نه ئې سمه ساه اوواته - یو ساعت پس چې طبعیت ئې لږ ښه غونډے شو، نو په توبو سر شو - وے!" یا الله توبه - ته ډیر لوے ذات ئې - ته په ما ډیر مهربانه ئې خدایه - شکر دے چې دا کار مې نه دے کړے- ګنې بیا به مې څه کول؟ خو زړۀ وو جو دا باقي پاتې ژوند به مې خوړو نو -"

حاجي صیب په اکرم خان باندې بیا غږ وکړو- اکرم خانه! دا له څنګه چل دے؟- دا څه نمونه خبرې شوروع شوي دي؟- نادرے خو څه خیر دے هغه د مشرانو خبره چې څنګه ئې مې وي هغسې ژۍ وي- خو په دې ښځو څه

چل شوے دے؟- غیرتیان او بې غیرته خو به په نارینو کښې وو- خو پښتنې به ټولې پرده دارې، حیادارې، عزتمنده او غیرتي وے- د سړو سره خو به دې هر جوړ کولې شو، خو دوي به څوک څنګه راټینګې؟- دا خو ډیره زیاته ګرانه شوه- د شمروز خان په سترګو کښې په اول ځل اوښکې راښکاره شوے- ټوپک ئې اکرم خان ته حواله کړو- وے ' دا واخله ده له ئې ورکړه- دا د دهٔ شو- زما د لاس ټوپک دے- خو زما نور نه دے پکار- او ورته اووایه که څه سوال ، جواب یا ضروت یې را پیداکیږي نو چې له تاسره خبره کوي - مخې له مې ډیر ځې راځي نه - حاجي صیب د اکرم سره دغه سوال ، جواب اوکړو او نیغ لاړ کوټې ته، لاړ او په جاه نماز اودریدو -- او د عمر جمع اوښکې ئې پرې توې کړې-

......***......

# په شتو کښې ورک

افسانه

محمد عارف سنګین

نن د "پو" د جړې درېمه ورځ وه او درېمه ورځ د زرولي هم وه چې بیلچه او کښتي په اوګه به پُل ته تلو او بې مزدورۍ به واپس راتلو. د زرولي کورته راتلو سره به ګل ځانګه د هغه د مخ د لیدو او قدمونو د چال په پوهېده چې نن هغۀ کار کړې دے یا نۀ.

زرولي سترے ستومانه لوند خوشت خواره خُلۀ په کور راننه وتو د هغۀ د لیدو سره میر من وار خطا غونې شوه خو ډیر زر ئې د الله پاک د "رازق" صفت مغزو کښې اوچوزلیدو او په زړۀ زړۀ کښې په توبو شوه.

زرولي چې دکوټې د انغري غاړې ته رارسېدو نو ګل ځانګې یو غېږ د ګنو پترۍ د جارګي نه کوټې ته راوړې وه د پترۍ شوړې ئې انغري کښې سمې کړې او زرولي له ئې اوچې جامې راواخستې. پترۍ ته ئې تیلې او وهلو او د زرولي نه ئې ټوپۍ واسکټ او قمیص لرې کړو. د هغۀ بې ترتیبه لوندۀ ویښتۀ مخ او رو رو د هغۀ د ویښتو ډکه سینه ئې په خپل زوړ څادر اوچوله. خو کله چې به د هغې ګوتې د زرولي په سینه رابنکلې شوې نو د زرولي د بدن په حساسو رګونو کښې به میږې غوندې اوخوزېدل. ګل ځانګې چې د خاوند لاس د خانه چاپیره محسوس کړو نو اوچې جامې ئې په تلوار د هغۀ لاس کښې کېښودې او د خندا ډکه خلۀ کوټې نه په منډه لاړه.

د زرولي او د ګل ځانګې د وادۀ میاشت نیمه دپاسه دوه کاله تېر وو خو لا د اولاد د نعمت نه محروم وو.

ګل ځانګې چې پتیلا کوټې ته راوړه نو زرولي جامې بدلې کړے وې او خپل د وادۀ سور پالنګ کښې ئې برستن په پښو راخوره کړې وه. اوس پتیلا د پترۍ د لمبو د پاسه پرته وه دوه اګۍ په کښې رو رو خوټکېدې. ګل ځانګې چې دواړه اګۍ سپېنې کړې نو زرولي شرط کېښوده چې یو به ته خورې او یوه زۀ

ګل څانګې ورته ډېر منت اوکړو چې توله ورځ باران وهلې ئې ناروغه به شې خو
زرولی کله منله په خپل لاس ئې اول ګل څانګې ته ورکړه او بیا ئې خپله اوخوړه
چائے ئې ورپسې اوڅښلې او اوده شو.

سحر چې زرولی خان مزدورۍ ته تیارولو نو ګل څانګه ورته را نژدې شوه.
باران ډېر تېز دے کارمار هسې هم نشته نن دمه اوکړه الله مه کړه ناروغه نه
شې. زمونږ او د ښکاري یو مثال دے هغۀ چې د ربړ بوټان څنډل نو ګل څانګې
ه ئې اوئېل. خو ښکاري سحر ټوپک په اوګه کړي او مونږ بېلچه او ګېنتې او د
لله په توکل له کوره اوخو.

زرولی چې د سوتلې بوجۍ له یو ګوټ رامات کړو او په سر ئې برابره کړه
ـ ګل څانګې ورته بېلچه او ګېنتې راپورته کړه زرولی چې نن پُل ته لاړو نو پُل
الي و. کومو مزدورانو به چې مزدورۍ ته په پُل شپه تېروله هغوي هم باران نه
ختېدلي وو زرولي ایله بېلچه او ګېنتې خان ته مخې ته کېښودله او لا ځان
ندې ئې خښته سموله چې موټر ئې خوا کښې اودرېدو. مزدوري کوې؟ ولې نۀ
ې بي هم مزدورۍ ته خو ناست یم . زرولي چې او کټل نو موټر ښځې چلولو.
ځه د موټر وروستي سیټ ته اوړده شوه او زرولي بیا سره د بېلچې او ګېنتې
وستي سیټ کښې ناست ؤو. خو اوس زرولی ته دا احساس وشو چې هغۀ خو
ند دے او د موټر سیټ هم لوندېږي خو لکه ښځې چې ورته شیشه کښې
ل. هیڅ خبره نۀ ده دا د انسان نه ښۀ نۀ دے داهم د انسانانو دپاره جوړ دے.
ولی د موټر د ګرمې هوا نه پوره خوند اخستلو او لا دې سوچونو نه نۀ ؤو
وتلے چې کار به څۀ وي چې موټر په یو لویه بنګله ورننه وتلو.

ښځه د موټر نه کوزه شوه. زرولی بېلچې ته لاس کړو. دې ته ضرورت نشته
پرېږده ښځه مخکښې او زرولی ورپسې دواړه په بنګله ننوتل . پاس په پوړو
ختل ښځه یوکمرې ته ننه وته زرولی د کمرې ور کښې ودرېدو. راځه کنه
څې شاته وکتل. د زرولی پښې د ختو وي هغه لاندې پښو ته وکتل خبر دے
ځه ښځې ډېر په همدردۍ ووئېل.

زرولی چې د کوټې چت ته وکتل چې دوه درې ځایه څڅېدو نو څهٔ لږ ډېر پوې شو دا ټول سامان دې بلې کمرې ته وړل دي چې اسمان شین شي بیا به ئې چت سره راکاړو. زرولی ملانه څادر تاؤ کړو او د ور سره جوښت یو درون میز ته ورغاړه وتو صبر صبر دې بله کمره کښې خو ورته ځاے جوړ کړه کنه.

زرولي خوا کښې کوټې ته ننه وتو او د سترګو په رپ کښې ئې درانه درانه شایان د دېوالونو غاړو ته کړل او بیا هم هغه میز ته ورغاړه وتو کوم چې په مخه کښې پروت ؤو. پام بچې میز دروند دے او د هغهٔ د چې مېز پورته کړولو په وخت یو ځل بیا په ښځه نظر پرېوتو نو هغهٔ واقعي که د هغهٔ د مور نه مشره نه وه نو کشره ترې هم نه ښکارېده.

لنډه دا چې ګېنټه یا څهٔ دپاسه تېرېده نو زرولی د دې کوټې سامان دې بله کښې ځاے کړے وو.

نور څهٔ کار شته بي بي ؟ نه لوے شې. خو ددې کمرې پاس چت که ګورې او ماته څهٔ مشوره راکړے نو احسان به دې وي۔ ۰۰۰ په سترګو ۰۰۰. زرولي ډېر په اخلاص ووئېل.

دا ماربل به ویستل غواړي اوبهٔ ئې هم سمې نهٔ دي ماتې او د ماربلو ترمینځ سیمټ چاؤدي دي. زرولی خپل نظر ښکاره کړهٔ. ته کینه زهٔ راځم چې د چت نه راکوز شو نو بي بي یو میز ته اشاره وکړه چې ډېرې کرسۍ ترې چاپیره پراتې وي.

لږ وخت پس بي بي پتنوس په لاس راغله چې تهرماس دوه پیالۍ ، کیک او بسکټ پکښې وو. ماله سحر نۀ چایۍ نهٔ دي څکلې بي بي چې پتنوس کېخوده نو زرولی ته ئې پاس وکتل خو ما خو څکلي دي زرولی په پتنوس نظر تېر کړو. تاخو دومر دارانه درانه سامانونه پورته کړل چې هغه به هضمې شوے وي. بي بي مسکۍ شوه.

د چایو نه پس چې دواړه د بنګلې نه بهر اووتل نو بي بي د دېوال خواته چې سنګ مرمرو نه پښ درې فټه ساده فرش ته ګوته ونیوه. زه غواړم چې دا

ـش سراسر مات شي د دېنه پټې جوړ شي او د پټي تازه خاوره پکښې خوره ي او سبزي، ګلون پکې نال کړم نو څنګه به شي؟ بي بي زرولی ته مخ ستون کړو دېره به ښه شي زرولی د دېوال غاړو غاړو ته نظر تېر کړو. ټېکدار انه د دې کار يو نيم لاک روپۍ غواړي خاوره به هم هغه راوړي. بي بي زرولی ،راتاؤ شوه لکه چې هغه نه مشوره غواړي.

دا پيسې خو ئې درته ډيرې ونيلې دي هغهٔ د ټول کار جاج واخستلو که يو ک شي نو هم پکښې ښهٔ برابره مزدوري پاتې کېږي. هغهٔ خپله رائې ښکاره کړه ، به ئې په څو وکړې بي بي زرولی ته اوکتل. زهٔ؟ زرولی سروګرولو! داسې ارونو له ډېر اوزار پکار وي او ماسره ، هغهٔ موټر ته ګوته ونيوه دا يو بېلچه او ـ ګېنتې. اوزار به درله زهٔ واخلم بي بي زرولی له ډاډ ګېرنه وکړه او هره هفته ،مزدورانو له پيسې هم ورکوم هغې زياته کړه.

زرولی خله کښې ګوته ونېوه او رو رو د دېوال خوا خوا کښې روان شو او ې واپس خپل ځاے ته راغله نو لکه د يو پوخ ټېکدار ئې بي بي ته مخ ستون کړو ماله به څو راکړې؟ تاوئېل چې يو لاک کښې هم مزدوري پاتې ېږي "او" بلکل زرولی ښهٔ شبېه پس سر اوخوزولو او شوه توکل په لوے الله بي ـ کاپي او قلم راواخستهٔ ښه ستا اوس څهٔ څهٔ پکار دي ، يو غټ پلک دوه لو، دوه بېلچې، دوه ټېنتېانې، هغهٔ خپله بېلچه او ګېنتې هم شمار کړو، او ـ لاس ګاډے بس؟ بي بي زرولی ته اوکتل او في الحال خو هم دا پکار دي تر انامه به ما داسامان راوړے وي خو هسې نه چې بي بي ، زرولي ته مسکئ وه . زرولی موټر نه خپله بېلچه او ګېنتې راکوز کړه دا خو به تاته ډېر وارهٔ ايان ښکاري خو دا زما ټوله سرمايه ده او هم دا زما ضمانت شو سبا به دوران راولې نه بي بي سبا جمعه ده د خالي په ورځ به زهٔ کسان راولم سمه ده ـ بي زرولی ته کوز پاس وکتل او الله پوهېږي چې ولې د هغې يقين وو چې ولي به راځي.

بي بي موټر ته کېناسته او زرولي ته ئې هم د کيناستو اشاره وکړه. خپله

بټوه ئې راواخسته چې مخکې سیټ کښې ورسره پرته وه. دا واخله وشماره لس زره دي دا د مزدورانو د بوتلو راوستو خرچه او بیا لږ وخت پس ئې دوه زره روپۍ نورې هم ورکړې دا ستا د نن ورځې مزدوري ده. دا خو ډېرې دي بي بي زما خو پنځه سوه۔ ۔ ۔ ۔ بس بس جیب کښې واچوه بي بي نورې خبرې ته پرېږده. څو بچي دې دي؟ بي بي ګاډے سټارټ کړو. یو زه یم او یو مې ټبر مور مې تېر کال وفات شوه. الله دې اوبخښي آمین زرولي په زوره ووئېل. بي بي ؟ زرولی لږ خاموش شو لکه چې څۀ سوچ کوي تاڅۀ وئېل بي بي تپوس وکړو. ما وئېل چې مزدورانو ته دا معلومه نۀ شي چې ګینې زما تېکه ده. ولې ؟ بي بي پوښتنه وکړه . زۀ دا نۀ غواړم چې ځان د هغوي نه اوچت یا هغوي ته ځانونه مانه کم ښکاره شي. واه ؛ ښکلې خبره او ښکلې جزبه او ښکلې سوچ دے بي بي مسکۍ شوه.

زرولی چې په پل بي بي نه کوز شو نو نېغ د کبابو دوکان ته لاړۀ. کباب روټۍ ئې ځان سره واخستل او د کلي ډاټسن پورې اونختو؛ د ماسپښین نه لږ مخکښې زرولي په کور دننه شو په ګل ځانګې چې د سحر چایو سره ئې روټۍ هم نه وه خوړلې د کبابو بوئ ډېر ښۀ ولږېدو. بیلچه او ګېنتې دې څۀ کړه. زرولی چې د کبابو ګوټئ خلاصوله نو ګل ځانګې پوښتنه اوکړه.

زرولي خوشحاله خو لږ فکر مند هم ښکارېدو. روټۍ نه پس زرولی رو رو ګل ځانګې ته ټوله قیصه تېره کړه زۀ په دې خبرو څۀ پوهېږم . هغې چې د روټۍ څه خوسکي راټولول نو زرولی ته ئې ووئېل خو الله پاک دې کامیاب کړه.

زرولي هم په هغه ورځ کلي کښې مزدوران برابر کړل یو ځاے ئې سره خوښ کړو چې د جمعې مبارکې لمونځ نه پس به صلاح کوو. صلاح په دې راغله چې سحر وختي به څو که بي بي سامان نۀ وي راوړے او باران له الله صبر ورکړے وي چې مزدوري مو خرابه نۀ شي. دا خبره یو بوډا مزدور وکړه چې ټولو کښې مشر او تجربه کار وو.

د خالي په ورځ چې زرولی مزدوران دلاسونو په اشارو په کار پوئې کړل نو

ولو نه اول هغه بوډا مزدور د بسم الله نه پس په لاس توکانړي پورې کړو او غټ
بلک ته ئې لاس کړو. د څوګزارونو نه پس ئې ملګرو ته په شا وکتل فرش لاندې
نه دړد دے. مسکے شو چې لار به پکښې جوړه شي نور اسان دے. دویم کس چې
لاس ګاډي راجوخت کړو او نورو ببلچې او ګینتیانې راپورته کړې. لنډه دا چې
د غرمې روټۍ نه وړاندې دوي د بنګلې د لنډو دیوالونو نه تاؤ شوي وو.

په څلورمه ورځ چې زرولي د غرمې چُټۍ نه وروستو ببلچه پورته کړه نو لړ
سوچ نه پس ئې ملګګرو ته مخ راستون کړو. خوښه مو نۀ ده ؟ چې پُل ته لاړ شه
چرته ټرک والا پیدا کړم چې هم ببګاله راته یو دوه پېرې خاوره واړوي. بوډا
مزدور نېغ شو ، ښه شیبه ئې دباقي کار اندازه واخسته بلکل سمه ده زرولي ته
ئې اووئېل.

سبا د غرمې روټۍ پورې د زرولي ټېکه خلاصه وه. ستاسو نن څویمه ورځ
وه. بي بي راووته پنځمه بوډا مزدور ور وړاندې شو بي بي بټوې ته لاس کړو.
دوه نیم دوه نیم زره روپۍ ئې ټولو ته ورکړې. د زرولي په خوا کښې تېره شوه
خو لکه چې زر ورته یاد شو چې زرولي خپله ټېکه ښکاره کول نه غوښتل نو
هغۀ ته ئې هم ورکړې . ته لږ ایسار شه ، بي بي چې برنډې ته وورسېده نو
زرولي ته ئې په شا اوکتل مزدورانو یو بل ته ووکتل خو بوډا مزدور په اوچت
اواز اووئېل. د الله په مان بي بي او نور هم ورپسې د بنګلې نه بهر شو.

بي بي او زرولي برنډه کښې په کرسیو ناست وو. دا بنګله زماده خو زما
څوک نۀ شته بي بي ګیر چاپېره بنګلې ته ګوته تاؤ کړه ښه جي زرولي ډېر لنډ
ځواب ورکړو. زما ډېر ژوند لندن کښې تېر شوزما مور پلار او ورور په یو ورځ
لندن کښې په یو حادثه کښې مړۀ شو او زه یواځې پاتې شوم. د بي بي سترګې
راډکې شوې. الله دې وبښي، زرولي خپله همدري ښکاره کړه.

ته د کوم ځاے ئې؟ بي بي سترګې ؤچې کړې د "د مرخانۍ"؟ بي بي لکه
چې له خوبه رابیداره شوې وي "او" زرولي سر وخوزولو بي بي چپ شوه تا
مرخانۍ لیدلې ده؟ زرولي پوښتنه وکړه. بي بي چپ وه تۀ مرخانۍ کښې څوک

پېژني؟ زرولی بل تپوس وکړو. بي بي چپ وه بله پوښتنه زرولي مناسب ونۀ ګڼرله.

د ملک باروز خان نامه دې اورېدلې ده؟ ډېر وخت پس بي بي سرپورته کړو. "او" ولې نه زرولی خوشحاله غونډې شو. او خلک داهم وائي چې د ډېکې کورونه او د کولالانو د ګړې ټول کورونه د باروز خان ملک وو. او داټول ئې دکلي غريبانو ته مفت ورکړي دي. زرولی چې پوے شو چې په بي بي بيا د خاموشۍ چپه راغله نو خپله شروع شو زمونږ کلي کښې ډېره د کر کرونډې زمکه ده چې ورته د باروز خان ارټ وائي. هغه د سترګو لاندې بي بي ته اوکتل او يو د غزونو جنګۍ ته هم د باروز خان جنګۍ وايي. دا ټول جائداد اوس زما دے يواځې زما خو زما هيڅ څوک نشته. بي بي د او ښکو ډکې سترګې زرولی ته راواړولې.

تۀ د چا څوے ئې؟ د چا څوے يم؟ په زرولی نرے نرے خوله راغله سر پرې اوچورلېدو، مرۍ ئې وچه غونډې شوه. سترګې ئې مرغۍ مرغۍ شوې او بيا په لاشعوري توګه پټې شوې. د کرسۍ په پلن لاسکي ئې د دريو ګوتو سرونه بې واره ټکېدل چې يوعجيبه ساز ترې جوړې دۀ. داسې ساز لکه چې بي بي ته دا احساس ورکوي چې ماته وخت پکار دے ستا پوښتنه دومره اسانه نۀ ده ډېر سوچ غواړي ، او دې سوچونو سوچونو کښې ئې ځان د مور سرته ولاړ مينده کړه. چې د هغې د مرګ نه دوه ورځې مخکې زرولی د هغې سرته ولاړ ووېه سر ئې ورله رو رو زور کولو هغه رنځونو ډېره کمزورې کړې وه. ژبه ئې تته شوې وه خو بيا ترې هم زرولی هغه پوښتنه کړے وه چې چرې ئې هم ده له ځواب نۀ وو ورکړے.

او دا لکه چې د زرولی اخري کوشش وو. پولسان او پوځيان د خلقو شناختي کارډونه ګوري اوس خو چې چا سره نۀ وي نو جيل ته ئې بوځي د زرولی د سترګو نه د مور په مخ اوښکې پرېوتې وې چې هغې خپلې پټې سترګې خلاصې کړے وې، او زما شناختي کارډ څکه نه جوړېږي چې ماته د پلار نامه

ـه ده معلومه!.

زهٔ د یو خان کره نوکره وم د کلي نه ډېر لرې د خان څهٔ نامه وه؟ زرولی ترې پوس کړے وؤ. خوېه مانه د هغوي ټولې نامې هېرې دي مور ئې ډېر سوچ نه ـس ووئېلي وو لکه چې د نمک خوارئ هاغه قسم ورته یاد شوے وي چې په اسې موقو ئې بنګلې واله نوکرانو له ورکوي چې د زرولی په مور د ټوخي ـختنه چپه تېره شوه نو بیا رو رو شروع شوه.

زه سترے ستومانه په خواره خوب اودهٔ وم شپه د نیمې نه تېره وه مشره بي ي زما کچه کوټې ته راغله چې د هغوي د بنګلې په یو ګوټ کښې وه هغې سره یو څو شیبو ماشوم په تولیه کښې انغښتې و "بلبلې" هغې زه وخوزولم او ما ې سترګې وغړولې نو مشره بي بي زما سرته ولاړه وه. د دې کور عزت اوس ـتا په لاس کښې دے هغې ماشوم زما غېږ کښې واچولو نوره قصه ماته علومه وه چې دا د دې د لور څوے وو چا چې د مور پلار او رور نه پټ د ښار ـ هلک سره نکاح کړے وه او هغهٔ هلک زما د نیک زوي مړ کړے وو خو خور ې نه مور په تاخانه کښې پټه کړے وه او بیا پلار لور خان سره ولایت ته بوتله . څهٔ موده پس زهٔ خبر شوم چې مور او څوے هم ورپسې لاړل .

د زرولی په مور چې د ټوخې بله چپه هم تېره شوه نو ډېر په یره یره د ژبې د ـدې ئې ووئېل هغه ماشوم ماخان سره دې کورته راوستو نوم مې ورله زرولی ـخوده.

مور چې زرولی ته سترګې پورته کړے وي نو د زرولی ئې په کښې یو ګنبدونکې بې وسي لېدلې وه. څوېه که شناختې کارډ د پلار د نوم نه بغیر نه ـړېږي نو ستا به چرې هم جوړ نهٔ شي . د زرولی سترګې پټې وي خو د مور ـب ډوب ټوخې ئې غوږونو کښې بنګېدهٔ.

ته د چا څوے ئې؟ بي بي د زرولی د خاموشۍ په مطلب پوې نه شوه نو ـل سوال ئې بیا تکرار کړو. د بلبلې زرولی ډېر په هیبت اوونېل د بي بي نه ـه لاړه. دا نامه ورته اشنا اشنا غوندې ښکاره شوه. خو لکه چې څهٔ نتیجې ته

او نۀ رسیده . د پلار دې څۀ نامه ده؟ ډېر وخت پس بي بي بله پوښتنه وکړه . او دا هغه پوښتنه وه چې زرولي ئې ډېر وخت نه وارخطا کړے ؤو.

تاماسره څۀ شجرې شروع کړي . د هغۀ د سترګو نه د اور بخري اورېدل. که په خپله وعده پښېمانه يئ نو صفا راته اوايه چې څم درنه. زرولی ځان له د تېختې لار لټوله.

نۀ ماسره د پیسو کمې شته او نۀ په وعده پښېمانه یم خو الله پوهېږي چې ولې زما زړۀ غواړي چې ډېر څۀ درته او وایم هغه څۀ چې نته پورې ما چاته هم نۀ دي وئېلې بي بي د زرولي په رد عمل حیرانه غوندې شوه. خو زر ئې ورته خپله قصه شروع کړه.

ما ډېره موده وړاندې د مور پلار او ورور نه په پټه د دې ښار د یو هلک سره نکاح کړے وه.زما ورور په دې نکاح ډېر غصه شوے وو او زما خاوند ئې په بې رحمۍ مړ کړے وو.

او تۀ مور په تاخانه کښې پټه کړې وې. د زرولي د مرۍ رګونه راوپړسېدل سترګې ئې لکه انګار سرې وې چغو ئې د اسمان لمنې څیرې کولې خو لکه دۀ چې خپله نۀ اورېدله او چې څوے دې وشو نو مور دې په نیمه شپه په تور تیاره کښې د بلبلې غېږ کښې واچولو.

تاسو ټول له شرمه ولایت ته وتختېدئ او بلبلې! د هغۀ غږ په مرۍ کښې بند شو لکه چې د زړۀ زور ئې خلاص وي. ډېر په ګرانه په ډېر کمزوري غږ سره ئې ووئېل او بلبلې د هغه ماشوم نامه زرولی کېخوده . د بي بي سترګې پټې وې او چې زرولی خپلو پښو کښې لږه ساه محسوسه کړه خپله بېلچه او ګینتي ئې په اوګه کړه او د بنګلې د لوے ورۀ په طرف روان شو.

......***......



Scanned by CamScanner

# په وبا کښې حجره

افسانه

ایازالله ترکزے

د نورو ورځو په شان نن هم په حجره کښې د کلي زیات تر خلق راغونډ وو ګپونه مپونه لګېدل او بحثونه شروع وو حجره ښۀ لویه وه ګېرچاپېره ترېنه د ختې پېړ پېړ دیوالونه راتاؤ وو -یو د جامن دوه د توتانو او دوه د چینارونو لوے لوے ونې په کښې ولاړې وې ، او دومره سیورے ئې جوړ کړے وو چې د کوټو مخې ته لویه برنډه کښې په کټونو کښې به څوک هم نۀ کښېناستل بس هر چا به دغه د ونو سیوري لاندې کټ ته زور کولو ځکه چې دا د ونو سیورے به ډېر یخ وۀ په حجره کښې هر څوک د خپل طبعیت مطابق په خپل انداز په کټ کښې ناست وۀ بعضې کټ کښې دوه بعضې کښې یو کس ناست وۀ چا به پښې زوړندې کړې وې څوک به پروت وۀ دلدار ماما دوه بالښتونو ته اډانه وهلے ناست وۀ عبدالله ته ئې مخ واړولو او تپوس ئې ترېنه اوکړو، عبدالله بچے چې نن سبا دنیا دکرونا وبا باره کښې څۀ وائي ؟-

"عبدالله ورته اووې "دلدار ماما د میډیا والا خو ډېر بد حالات جوړ کړي دي چې نۀ ئې ګورې نو ښۀ ده انسان ورسره ذهني مریض شي"

دلدار ماما: او بچے دا خبره دې هم سمه ده -

اقبال ماما په کټ کښې زوړندې پښې ناست وۀ سر ئې ټیټ کړے زمکې ته ئې کتل چې سر ئې راوچت کړو او خواه کښې کټ ئې ورسره قادر ناست وۀ هغۀ ته ئې اوکتل او ډیر په تجسس سره ئې اوپوښتل "قادره بچے خلق وائي چې هسپتال ته لاړ شې نو د زهرو ستن درته وهي او بس مړ دې کړي - که د هر څۀ بیمار ئې نو بس په دغه لانجه کښې دې شماري تۀ خو ښار ته ځې راځې چې دا رښتیا دي او که نۀ؟

قادر د اقبال ماما طرفته لږ په ترس راتاؤ شو او په جواب کښې ئې ورته اووې سمه پته خو مونږ ته نشته البته دا خبره ده چې څوک هم هسپتال

ته د علاج د پاره ځي هر سړے ویرېږي چې دلته درته ستن وهي او مړ کوي دې هر څوک پرائیویټ ډاکټر له ځي ، هغه بله ورځ لوے هسپتال ته لاړم د نورو میاشتو غونډې رش په کښې نۀ وۀ تا به وې چې د هسپتال چهټي ده۔

عبدالله د قادر په خبرو کښې رادننه شۀ او وې وئیل اصل کښې خبره داسې ده چې که معمولي مرۍ دې خوږېږي یا دې صرف زکام هم وي نو درته به وائي چې نزدې مۀ راځه د لرې نه به ډاکټر ته خپل حال وائې او که چرته یو دوه ټوخي دې اوکړل نو بس بیا خو دې خبر نشته بغېر ټسټه دې په کرونا کښې اچوي او یو ځانله کمره کښې دې اچوي بیا نو قسمت دې خپل دے که ژوندے ترې رااوتلې او کۀ مړ۔

د عبدالله د خبرې ختمېدو سره د حجرې په دروازه محمود کاکا رادننه شۀ کونتې ورسره په لاس وه په مزه مزه قدم را روان وۀ او چې کټونو ته رانزدې شۀ نو سلام ئې اوکړو ټولو ترېنه سلام واخستو یو کټ بالکل خالي پروت وۀ په هغې کښې کښېناستو یو بالښت په کښې پروت وۀ قادر پاڅېدو د کوټې نه ئې ورله یو بل بالښت هم راوړلو او دغه شان محمود کاکا دوه بالختونو ته ډډه اووهله د لرې کټ نه پرې سعید خان اواز اوکړو محمود کاکا څۀ حال دے د څو ورځو نه دې پته نۀ لږي خېر خو دے کنه؟

محمود کاکا: سعید خانه بچے بس داسې ورځې دي چې څومره ځان له ئې نو ښۀ ده هر انسان د بل انسان نه کرکه کوي نۀ څوک غاړه درکوي نۀ څوک لاس ملاوه وي بس چې کور کښې پروت ئې نو ښه ده۔

سعید خان : محمود کاکا ډاکټران وائي چې دا بیماري هم د لاس ملاولو نه یو بل ته لږي کنه۔

محمود کاکا: په پته ئې نۀ پوهېږو چې څوک رښتیا وائي بس الله دې رحم اوکړي ملیان وائي چې نۀ لږي او ډاکټران وائي چې لږي پته نشته چې د چا اومنو۔

قادر سعید خان ته مخ راواړولو او ورته ئې اووې سعید خانه پته

نشته چې دا څنګه بیماري ده مونږ خو تر اوسه یو بیمار هم په خپلو سترګو او نۀ لیدو ، او چې کوم ملګري ته کال کوو که هغه د هرې علاقې وي ، چې هلکه ستاسو په کلي یا محله کښې څوک شته یا ترېنه مړ دے ؟ نو لنډه به درته اووائي چې نه نۀ خو مو څوک اولیدل او نۀ زمونږ څاے کښې څوک شته دے پته نشته چې دا بیماري چرته ده۔

سعید خان: ولې دغه د خوږ په غاړه کلي کښې هفته مخکښې پروېز مړ نۀ شۀ څۀ ؟

قادر خان: نو د دې څۀ پته لږي چې د هغۀ دغه بیماري وه او که نۀ؟ هغه خو د مخکښې نه بیمار وۀ۔

سعید خان: ټسټ ئې ورله لېږلے وۀ کنه د مرګ نه درې ورځې پس ئې ټسټ راغلے وۀ بیماري په کښې وه ما ئې د ورور نه تپوس کړے وۀ۔

قادر خان: بس دغه بیا زمونږ د لیدو اولنے بیمار شۀ چې مړ شوے دے

عبدالله: سعید خان زما خیال دے حکومت خلک هسې پسې هم ډېر ویرول څکه چې په موبائل کښې د کرونا خبرې، په اخبار کښې د کرونا ، په ټي وي د کرونا په رېډیو کرونا ، پته نشته چې دومره به خطرناکه بیماري وي هم او که نۀ؟ خو دوي دا خلق ډېر زیات ویرولي دي۔

سعید خان: د وېرې بیماري ده هم، څکه که خداے مۀ کړه زیاته شوه نو بیا ئې قابو کول ډېره ګرانه خبره ده۔

سردار ماما چې سعید خان سره په یو کټ کښې ملاست وۀ رانېغ شۀ د کټ په مینځ کښې ئې پرلت اووهلو سعید خان ته ئې مخ کړو او ورته ئې اووې یار سعید خانه دې حکومت خو د دې بیمارۍ نه ډېره فائده واخسته دومره پېسې ورله د نورو ملکونو نه راغلې چې حال مۀ وایه خو مجال شته چې عوامو کښې ئې چا له یوه روپۍ هم ورکړې وي۔

سعید خان: سردار ماما دومره ډېرې نۀ دي راغلي څۀ نا څۀ راغلي ۔ خو دا

ګورې نهٔ چې د احساس پروګرام په نوم ئې خلقو له څومره پیسې ورکړې؟
سردار ماما: کوم ډي په ټول کلي کښې پنځو کسانو ته ملاؤ دي باقي خبر خبریت دے۔
سعید خان: نورې به هم راځي کنه۔
سردار ماما: سعید خانه ستاسو حکومت دے تهٔ ئې څکه طرف کوې ګني هر څوک ترېنه خفه دي۔
سعید خان: یاره سردار ماما ټول ملک خوشحالول هم ډېر ګران کار دے ټول خلق چرته خوشحالېږي۔
سردار ماما: پرون نهٔ او هغه بله ورځ زما واړهٔ د دوبۍ نه راغلو راته ئې وې چې د جهاز ټکټ په 1120 درهمه سرکاري ریټ وهٔ او خلقو په درې درې او څلور څلور زره اخستې وهٔ۔
سعید خان: نو خلق ئې ولې ګران اخلي؟ زیاتې پیسې دې نهٔ ورکوي۔
سردار ماما: څنګه به ئې نهٔ ورکوي، هر سړے خپل کور ته ځان رارسوي او هلته چې ئې کوم خلق کښېنولي دي هغوي له چې ورشي نو لنډ درته اووائي ټکټ ختم دي او چې ځان له ورسره ملاؤ شي او زیاتې پیسې ورکړي بس بیا ټکټونه ډېر. داسې عجیبه غلهٔ ئې کښېنولي دي۔
عبدالله: او دا هغه خلق دي چې دې حکومت له ئې د الیکشن د پاره په کروړونو روپۍ د بهر نه رالېږلي وې او ډیر خو سپېشل د ووټ اچولو د پاره راغلي وو. او بیا واپس لاړل او نن هم هغه خلقو سره دومره ظلم شروع دے مجال شته که څوک پوښتني والا ئې شته۔
قادر خان: هغه بله ورځ سپریم کورټ د تېلو کمپنۍ والا راغوښتي وو او یو هم را نغلو یعني یو کمپنۍ هم عدالت کښې حاضري او نهٔ کړله دا لا څنګه حکومت دے چې نهٔ د عدالت ارډر چلېږي نه څوک د وزیر اعظم مني۔
محمود کاکا د کټ نه پاڅېدو او چې دوه درې قدمونه ئې واخستل نو

عبدالله پرې اواز اوکړو محمود کاکا څۀ کوې؟
محمود کاکا: بچے لرې اوبۀ څښکم.

عبدالله زر پاڅېدو او ورته ئې اووې کاکا تۀ کښېنه زۀ درله راخلم، عبدالله اوبو پسې ورغلو او محمود کاکا چې کټ طرفته راواپس شو او یو قدم ئې واخستو نو یکدم په زمکه راپرېوتلو ټولو ورمنډه کړله، محمود کاکا ئې په ټوله کسه اوچت کړو او په کټ کښې ئې واچولو سعید خان ورته اووې محمود کاکا تۀ خو ډیر زیات ګرم ئې کنه، ولې بیمار خو نۀ ئې؟ ماته خو دې تبه ښکارې.

محمود کاکا یو ټوخے اوکړو او ټوخې سره ئې اووې او سعید خانه بچے پنځه شپږ ورځو نه مې سینه خرابه ده او تبه مې هم کېږې ډېر مې زړۀ تنګ وۀ ما وې نن حجرې ته ووځه چې دا زړۀ دې لږه هوا اوخورې.

د محمود کاکا دا خبره کول وو او هر سړے ترېنه په روستو شۀ او هر یو ترېنه لرې اودرېدو، عبدالله راغلو اوبۀ ئې ورکړې او بیا ترېنه هغه هم لرې اودرېدو، یوه شېبه محمود کاکا ښۀ وۀ خو سمدستي ئې حالت په خرابېدو شو رچ پرې راغلو او په کټ کښې په رچېدو شۀ سعید خان، قادر ته اووې، هله زرکوه د محمود کاکا زوي ته اووایه چې په پلار دې څۀ چل شوے دے زر موټر راوله، قادر په منډه د محمود کاکا دې کره لاړو محمود کاکا به په کټ کښې پښې کله نېغې کړې او کله به ئې راغونډې کړې سر به ئې هم وهلو راوهلو خو مجال شته چې څوک د ویرې ورغلے وے. هر سړے د کرونا د وجې نزدې نۀ ورتلو.

لږ وخت پس چې د محمود کاکا زوے او قادر چې په موټر کښې راغلل او محمود کاکا ئې په غېږ کښې رااوچتولو نو د محمود کاکا په کټ کښې صرف بدن پروت وۀ روح په کښې نۀ وۀ.

......***......

# د ژوند چپې

افسانه

مستقیم خان

په کلو او ښاریو کښې موازنه او مقابله کول نۀ دي پکار ولې چې ښار خپلې رنګاګانې لري او کلے خپلې ښکلا ګانې لري د ښاریو شپې د ګلونو نه ډکې وي او د کلو ورځې د خوندونو نه، د ښاریو شور د ژوند دګرمۍ احساس ورکوي او د کلو خاموشي د فطرت د خاموشۍ سکون او نرمۍ اهمیت په ګوته کوي لنډه دا چې د کلو او ښاریو دواړو ژوند دا شان ضرورت دے، ولې چې د دې دواړو مثال داسې دے لکه د یوې سکې دوه اړخونه، ځکه خو زمونږ دا دریز دے چې کله دې هم په کلي او ښار کښې دیو ذکر په دا ډول اونۀ کړے شي چې د بل ترې سپکاوے ښکاره شي آو، دا بیله خبره ده چې د بل سره موازنې نه بغیر که د یو ځاے تذکره په ځانګړي حقله اوکړے شي نو بده نه ده.

دا خبرې راته دې پورې رایاددې شوے چې پخپله داخل یو ډېر وخت پس د ژمي په موسم کښې کلي ته راغلے ؤم. او که د کلي د هر تن نه پوښتنه اوکړے شي نو یقیناً اوبه وائي چې "دپو" او "ما" میاشتې اوږدې شپې ، د جړې بارانونه کچه غتې کوټې و پرله پسې بهېدونکے ناوې چې کله اتفاق سره راجمع شي نو بیا د ګهړیال د ساعتونو او مېنټونو خو څۀ چې د دقیقو ستن هم ولاړه محسوسېږي . وخت د تګ نوم نه اخلي او د دې نه په بیرته که سړے میلمه شي او د ښار د منډې ژوند نه کلي ته په داسې وخت کښې راغلے وي، او د بیته تلو دپاره صرف د دې خبرې انتظار کوي چې جړې اودرېګي، باران په قرار شي او په ورځ کښې د شپې غوندے راخورېدونکے دا تیارې په رڼا کښې بدلې شي نو انسان ته دغه وخت دا ډېره ګرانه شي خو د مشرانو خبر "کۀ ګور ګران دے نو د مړي ناکام دے" هر کله چې اوس مونږ په خپله خوښه دلته دراتګ فېصله کړے وه نو بیا دې هر څۀ ته مو هم غاړه

ېرکړې وه هسې دلته د خپل طبیعت او فکر دا خبره کول غوره ګڼړم چې که : يو څېز بې شمېره فائدې اخستونکے بنيادم هم د دغه څېز خود شمېر کوؤ و نېمګړتياؤ ته خوښ نۀ وي نو مناسبه نۀ دي چې بيا ئې د منفعتونو تذکرې و خوشحالي هم اوکړي. هر څو کۀ زه د خپلې دې رائے په حقله ګڼ شمېر مثالونه راوړے شم خو د يو مثال هم ضرورت نشته ولې چې پوهان پوهېږي و ناپوهه په دوه قسمه وي اول هغه چې ځان پوهول نۀ غواړي او دويم هغه چې د پوهېدو نه قريباً وتې وي. نو خبره مو دا کوله چې په دغه شان موسم او باران کښې مونږ هم دخپل عارضي او فاني ژوندڅو ساعتونه تېر کړے وي هم دا سبب دے چې له هغې نه په وروستو اوس کله چې د ژمي په موسم کښې باران جړی شروع شي نو يو دم ماته هغه وخت ښخي داسې راوړاندې شي ګويا زۀ ئې په خپلو سترګو وينم. داسې نۀ چې دغه وخت هم په دغه وخت کښې ماته د دغۀ کلي مشر بابا کړے وه کوم چې مونږ سره په ډېره کښې په خپل خواهش ناست وو. هغه زيرک بابا چې پوهه شو چې اوس ميلمانه د باران يخې او تيارې په وجه لږ څۀ پرېشانه حال شو نو څۀ داسې وينا ئې شروع کړه.

"زلمو! هرڅوک زه وينم چې تاسو لږ کوتے پرېشانه شوے ئې خو زۀ غواړم چې پرېشانی د حال نه مو د حيرانی په ور يوې بلې دنيا ته داخل کړم هر څوک مونږ وړاندې تر ډېر ساعته د خبرو اترو په نتيجه کښې دا منلې وه چې بابا جي يو جهان ديده او زيرک انسان دے خو بيا هم دې وروستنی خبرې ئې يقيناً چې مونږ حيران کړو. او انداز ئې هم دومره اثر کوؤنکے وو چې يو دم ورته مونږ ټول غوږ غوږ شو او بيا هغه مشر بابا جي په يو ساخپلې خبرې په دا ډول شروع کړے.

"زلمو ښۀ مې ياد شي چې دغه شان وخت، موسم او حالات وو هم دا شان باران او جړی وه چې هغه خبر مو ترغوږو شو کوم چې د ټول کلي په شان زه

هم د حیرانئ په سیند کښې ورډوب کړے وم. د برکلي معتبر ملک په حقله به مونږ دا قسمه خبر هم چرې په ژوند کښې واورو، توبه توبه..................

مشربابا به لاترڅو اپوته لاسونه غوړونو ته ورل چې زما ملګري ترې په تلوار تپوس اوکړو "ښه بابا جي نو داسي کوم خبر وو چې تاسو سره د نورو خلقو نې دومره حیران کړې وے. بابا جي شاید د خبري اورېدو سره فوراً محسوسه کړه چې وخت لږ کوټے زیات اوشو ځکه نو ئې بیا د شوے پېښې لنډیز څه داسي شروع کړو.

"او بچے ! وائم درته خو له دې نه وړاندې د دغه ملک په حقله هغه څو خبرې کول غواړم چې تاسو ته بیا دُ دغه پېښې او کۀ سانحه ورته ووایم نو شاید چې د فهم دپاره به زیات درست وي، د شدت په ښۀ شان اندازه وکړے شي.

مونږ که هر څو دا غوښتل چې بابا جي د دغې واقعې بیان زر تر زره اوکړي خو که ګور ګران دے نو د مړي ناکام دے په مصداق مو هغۀ ته سرونه په داسې اندازه کښې اوخوزول لکه چې ورته وایو بابا جي ستا خبره بالکل ټیک ده.

هغه خپله وینا په ټکو کښې جاري وساتله "بچو دغه ملک چې نور هرڅنګه وو بنو چا ئې څۀ باک نۀ ګڼړلو ولې چې کم نه کم په دومره خبره خو د کلي هر تن پوهېدو چې د ضد کم او مذکوم کله کېدے شي آؤاوې به ، یو شمېر ملکان، حاکمان ، غنیان او د امارت فضیلت لرونکي خلق به داسې هم وي چې د خپلې کمزورے طبقې خیال به ساتي، د هغو په غمونو او ښادو کښې به ګډون هم کوي د هغو سره به بې زباتنې لاس امداد او مرستې هم کوي خو د بده مرغه له دې تریخ حقیقت نه هم انکار نشي کېدے چې د مال، منصب ، مرتبې او حسب ونسب نشي د تماشو وي.

ما به لاڅۀ جواب ورکولو چې ملګرے مې وړاندې شو او فقط دومره ئې

اوښېل. او بالکل هم دغسې ده د دې خبرې په اورېدو د بابا جي په مخ د قرارے ځو چپې وار په اور تېرې شوے د انسان فطرت دے چې کله د هغه سره اتفاق اوشي نو يو عجيب شان سکون محسوسوي او د دې په عکس کله چې د اختلاف غږ ئې ترغوږو شي نو بيا د بې قرارے رنګونه ئې په مخ اوړي راوړي. بابا جي ته جوړ احساس وشو چې باران په قرار شو او ميلمانه به هم ستړي ستومانه شوي وي نو ځکه ئې بې د څهٔ وقفې نه وړاندي وينا شروع کړه.

د دغه ملک يو نا خوښه عادت د هر چا په خانګړي معاملو کښې بې ضرورته برخه اخستل او د بنيادمو په وړه شان غلطۍ او کوتاهي هم خندا ومسخرې کول وو. ښهٔ مې ياد دي چې کله به د چا د عزت او ناموس په خقله ګوته پورته شوه نو سوا له دې نه هر تن به خاموشه وو، او دا به ئې غوښتل چې خبره رفع دفع شي او دچاعزت، احترام او مقام ته ضرر او نهٔ رسي خو داسې بد نصيبه د ټول کلي په مقابله کښې يو داسې سړے وو چې ټوقې او خندونې به ئې وريورې کولے. هر دويم تن چې به ئې بيا موندو نو دغه بحث به ئې بيا بيا تازه کولو مړو سرو ټکو ته به ئې پوخي ورکول.

مونږ دغه خبرې اورېدې چې د ګاونډ عبدالله نومې زلمي د کوره چائے راوړې او هر تن ته ئې بې پوښتنې پيالۍ ډکې کړے.مونږ هم څهٔ غږ اونه کړو او د يو تن نيم نه علاوه ټولو دوه دوه پيالۍ وڅښلې مشر بابا جي د اخري ګوټ نه پس خپله وينا څه په دې ډول شروع کړه.

"بچو هغه چا رښتيا وئيلي دي چې د ازاره چا بازار نهٔ دے موندلے. هم هغه اوشو د کوم نه چې د کلي هر پوهه ويرېدو. زمونږ سره د ښار نه په اول ځل کلي ته راتلونکے ملګرے يو دم لکه چې ويخ شوے وي نو ځکه ئې په تلوار پوښتنه وکړه . بابا څه چل شوے وو هن! تاسو سره د کومې خبرې ويره ده؟ هغه په دې خبرې په ښکاره ټکو کښې کول هم مناسب نهٔ وي. خو بس په دومره قدرې خبره ځانونه پوهه کړے چې د ټول کلي د مشرانو په يادښت

کښې یو خل نیم په کلي او یو خل دوه د خواږ شا په علاقو کښې هغه بدي پسیلي شوے وي چې چا به هم د هغې په حقله څه قسمه تذکره او یاد دهاني نه کوله خو بس یو دغه تن وو چې بیا بیا او په هر مجلس کښې به ئې دغه اور ته پوکي وهل خو د ژوند چپې هم لکه د سمندر د چپو په مثال کله بره خي او کله ښکته . دا شان چې د دغه ملک د زوال وخت راغلو نو دومره لوے چپې اووهلو چې د دواړو طرفو نه ئې بندي کړو ولې چې که یو خواه ئې وزاره وو نو بل خوااو دا خل دهغه په چپ پاتې کېدو یو تن ته هم د څه تجسس او تلوسه پېدا نه شوه ولې چې د محفل شریک هر ملګرے پوهه شو چې معتبر ملک د دغه بدې واقعي نه پس به یقیناً معتبر نه وي پاتې او له دې نه په بیرته هغه ته به دا سبق هم په ښې شان حاصل شوے وي چې انسان ته د خیني جرمونو او ګناهونو سزا په دې دنیا کښې هم ورکړے کېدے شي. نو پکار دہ چې د ژوند په چپو کښې نه خو یو تن مایوسه شي او نه دې چرې د کبر او غرور ښکار شي بل پسې کېدونکې خندا یو خل خان ته هم راګرځي هم دا خبره ده چې مطالعې او مشاهدې نه هم حاصلېږي او تجربې نه هم ثابتېږي

......***......

# لمبه

افسانه

ابراهیم رومان

د حسن بي بي جامې به لکه د چرسیانو ځاے په ځاے چڼ چڼ وې خو فرق تش دومره وۀ چې د چرسیانو لمن لکه د غلبېل سیورۍ سیورۍ وي او د حسن بي بي ټول قمیص به چڼ چڼ وۀ خو حسن بي بي په تنور د ښائسته او د درنو ډوډو پخولو له پاره مشهوره وه او تنور چې لمبه شي خامخا ترې نه سپرغۍ الوځي او څوک چې د تنور غاړې سره ولاړ وي کۀ ډوډۍ پخوي او کۀ نۀ خو سپرغۍ ئې په جامو سلام اچوي

د حسن بي بي په کور کښې د حسن بي بي نه علاوه د هغې انګور، هم اوسېدله او زوے ئې بهر ملک کښې د مزدورۍ په غرض تلے وۀ د حسن بي بي خاوند چې کله وفات شۀ نو د حسن بي بي وړور دا سره د هغې د انګور چې د دۀ لور وه خپل چم ته د استوګنې لپاره راوستل او د ځان سره ئې ورله دېوال په دېوال کور اوېنوۀ د دې وجې نه د حسن بي بي د زوي په غېر موجودګۍ کښې هېڅ د غل غدو وېره نۀ وه

د حسن بي بي زوے دوه کاله پس چې د بهر نه د شپږو میاشتو لپاره خپل کور ته راغے نو د دۀ لپاره کور څکه نا اشنا نۀ وۀ څکه چې دلته ئې د ماما کور وۀ او دې به دلته تلو راتلو ناصر ته یوه ورځ خپلې مور حسن بي بي د دۀ د غوږ نه تېره کړه چې دا ښځه دې ډاکټرې ته اوښایه چې ما خداے پاک د نمسي نیا جوړه کړي ناصر هم داسې اوکړل او خپله ښځه ئې ډاکټرې له بوتلله ډاکټرې ورته ټېسټونه اولیکل او دوارو ته ئې د ټېسټونو په نتیجه کښې دوائي اولیکله.

ګلنار د حسن بي بي د ایکي یو ورور لور وه چې ډېره پرې ګرانه وه هسې هم دوي په کور کښې خوابنې او انګور اوسیدل چې څۀ به د دوارو

خوښ وو هغه به ئې پخول او دغسې د نارينو قدغن پرې نۀ وۀ د خپلې خوښې اغوستل به ئې کول دغسې د ګلنار او حسن بي بي ژوند په ښکلې ژوند تېر دۀ.

د کله نه چې حسن بي بي دې کور ته راغلې وه دا به د شپې په مينځو کښې د کوټې نه بهر راووتله چې د ګلنار به کله سترګې اوغړېدې نو د خپلې ترور په کټ به ئې چې سترګې اولګېدې نو د وېرې به په کټ کښې راټوله شوه خو زړۀ کښې به ئې راغلل چې ترور به مې چارچوبې ته تلې وي او سترګې به ئې ورغلې يوه شپه د حسن بي بي په راپاڅېدو ګلنار هم بېداره شوه او ځان ئې غلے کړو او حسن بي بي پسې لږ وخت پس ګلنار هم د کوټې نه براندې ته رابهر شوه ناګهانه ئې په تنور نظر پرېوتۀ تنور لمبه شوے وۀ او غرغندې ترې نه ختلې حسن بي بي به په لمبو ورښکته شوه او ټوله لمبه به ئې په غېږ کښې راټوله کړه او د تنور د لمبو سره به ئې مستي کوله کۀ څۀ هم دا د څلوېښتو کالو په عمر کښې وه خو بيا هم لکه د پېغلې ئې مستې ښودله چې لمبې کمېدې نو ګلنار د برنډې د ستن د شا نه کوټې طرفته روانه شوه او ورپسې حسن بي بي هم څۀ شېبه پس کوټې ته راننوته.

ګلنار به هم د حسن بي بي په شان د حسن بي بي د دا قسمه حرکاتو نه هره شپه خوند اخستو يوه شپه په حسن بي بي ايشېدلې تبه راغله او په خپل مقرره وخت ئې ګزاره وکړه او اودۀ شوه ګلنار د موقع نه فائده واخسته او په مزه مزه د تنور طرفته روانه شوه چې دا تنور ته نزدې شوه تنور په غرغندو شۀ ګلنار لکه د حسن بي بي د دغې غرغندو نه غاړې اخستې او ورټيټېدله به پرې او ښۀ خوند ئې ترې پورته کړو او کوټې ته راستنه شوه.

په حسن بي بي د شپې تبه عادته شوه او ګلنار به د دې تبې نه فائده اوچتوله يوه ورځ ګلنار ډېره خراب شو او چې د حسن بي بي پرې نظر پرېوتو نو په ډېره کښې ئې تېر شول چې زما زوے خو مياشت مخکښې د کور نه بهر تلے دے خو ماته مې زوي د تېستونو حال هم وئيلے دے چې مسئله مې زوي په کښې ده حسن بي بي په هغه وخت کښې د خپل قابو نه بهر اووته کله چې ګلنار ښه په خان پسې درنه يوړه او په خپل سر ئې خان له راکښنود

......***......

# اجل

افسانه

فراق اپریدے

کله چې ګل میر خان د کرش مشین ګیر اړو او نورو پورزو ته ئې ګریس او د خاورو تېل ورکول نو تر هغې د باران تېزې شېبې سم لوند خیشت کړے ؤ، ژمے ؤ نو بدن ئې سم د یخنۍ نه واوره شوے ؤ، خو هغه لا د باران او د یخنۍ په قیصه کښې نۀ ؤ،

ځکه چې دغه کار سر ته راسؤل که یو طرف ته د نېک حکم ؤ نو بل اړخ ته د ګل میر خان ذمه واري هم وه، د کار د خلاصېدو نه پس د کرش مشین دېرې ته د راننوتلو سره سم د لړېدلي هیتړ سره جوښت کېناستو، چې ځان ګرم کړي، نو بیا به د لاسونو پاکولو او لمدو جامو د وچولو سره ګوري، د یخنۍ زور ورباندې دومره زیات شوے ؤ چې د هیتړ تودوالے ورته هډو محسوسېدو هم نه،

د سختې یخنۍ له کبله د خوار ګل میر خان دا خبره په شپږم حِس کښې هم نۀ وه چې ګنې زما لاسونه په ګریسو او لستوڼي مې د خاورو په تېلو سخا شوي دي، د هیتړ د تودالي سره د ګل میر لاسونو او جامو اور واخېستو، اور دومره په تونديۍ سره د ګل میر خان په جامو او په بدن پورې شو چې تر څو هغه د خپل ځان نه اور مړ کولو مړ کولو نو نیم بدن ئې د لمبو په ولقه کښې راغلې ؤ، د ګل میر خان سره په خواه کښې یوه ډکه ټېکه (بوشکه) پراته وه، چې د ډېرې وارخطایۍ نه ئې هغه ډکه ټېکه په دې خیال په ځان را واړوله، چې ګنې په دې ټېکه کښې اوبۀ دي، او ددې اوبو سره به د هغه په وجود لګېدلے اور مړ شي، خو ګل میر خان غریب څۀ خبر ؤ چې په دې ټېکه کښې اوبۀ نه بلکې د خاورو تېل دي.

......***......

# بدله

شاه محمود خان مومند

فرحان سحر وختې ځان تیار کړو او انټرویو له پاره ښار ته په رنګینو سوچونو کښې روان شو. هغه په ځان پوره باور وو چې نوکرۍ به ورته میلاو شي، بیا به د خپلې خور واده هم اوکړي، د پلار علاج به هم اوکړي، مور پسې به خیراتونه او صدقې هم کوي او داسې نورې مسلې به ئې هم ختمې شي. ډېر زیات خوشحاله وو، کله کله به ئې د خپل واده سوچ هم اوکړو خو بیا به ئې سر سنډوهلو چې نا- کله چې مې ده پلار خوښه شي نو واده به کومه. مور ئې دوه کاله وړاندې هم ده دې غمونو د لاسه مړه شوې وه او فرحان ته هغه وخت ډېر ښه یاد وو چې مور ئې مړه وه او په کور کښې ئې د هیڅ درک نه لګیدو. داسې نور هم ډېر غمونه وو چې د فرحان ژوند ئې تاله ترغي کړے وو خو د فرحان حوصلې ته سلام چې نه خو پرې پلار پوهه شوے وو او نه ئې خور ته دا احساس شوے وو چې فرحان د کور غمونو څومره ځپلے دے، ټوله ټوله شپه رونبوې او په سلګو سلګو اوده کیږي.

فرحان هم په دې سوچونو کښې ښار ته اورسیدو، د کمپنۍ په ګیټ چې ننوتو نو په ریسپشن کښې ورته یو ښکلې جینۍ سلام اوکړو او ورته ئې اوئیل چې "سر! تاسو دلته کینئ او د خپل نمبر انتظار اوکړئ." فرحان چې کولے نو څه به ئې کولے، بس په یو کرسي کیناستو او انتظار ئې کوو، په سبق د لکهونو روپو تاوانونو نه روستو هم هغه ته نوکري نه مېلاویده، خو بیا ئې هم د خپل روښانه مستقبل سوچونه کول. بل طرف ته په ریسپشن جینۍ هم د فرحان ده حسن په سوچونو کښې ښخه شوې

وه، او هم دا دعا ئې کوله چې الله دې اوکړې چې فرحان ته نوکرۍ میلاو شي- فرحان هم ډېر ښکلے وو- جيني د فرحان په ديدن نه مړېده، چې څوک د فرحان نه روستو هم راغلې وو نو د فرحان نه ئې مخکښې کړل او د ټولو روستو ئې فرحان ته اجازت ورکړو چې د نوکرۍ له پاره انټرويو ورکړي-

فرحان د کمپنۍ CEO دفتر ته انټرويو له پاره ننوتلو نو په خپلو سترګو ئې يقين نه راتلو چې د دې کمپنۍ مشر احسن دے- ځکه چې احسن د فرحان د کالج ملګرے وو او د احسن نه په سبق کښې کمزورے هيڅوک هم نه وو- فرحان ته اندازه اوشوه چې وس خو راته نوکري بالکل نه ميلاوېږي ځکه چې په کالج کښې د احسن رويه هيڅا سره سمه نه وه، احسن يو نالائقه طالب العلم وو او ټوله پرچه به ئې په نقل کوله خو هيچا به ورته نقل نه ورکوو ځکه چې نور هلکان به د خپلې پرچې د حل کولو په سوچ کښې وو او د احسن د لاسه به دوې ته ډېره مسله وه نو هر هلک به دا کوشش وو چې ده احسن نه لرې کينې او هم دا وجه وا چې ده احسن ټالې به هيچا سره کړنګ نه خوړولو-

"دا خو ډېر ښه اوشو چې ته هم راغلې-" ده احسن آواز فرحان د سوچونو نه را اوويستو-احسن په خندا شو او ورته ئې وئيل چې "ستاسو د وجې مانه خپل سبق پاتې وو او اکثر به ستاسو د وجې فيل کيدم، تاسو خو زما په کار رانغلې نو ما وئيل چې زه ستاسو په کار راشم-"
"ډېر خوشحاله شوم چې تاسو د دې کمپنۍ مالک ئې او بله دا چې تاسو زمونږ په کار راشي دا نوره هم ښه خبره ده-" فرحان جواب ورکړو- "نا نا— داسې نه ده، زه غواړم چې تاسو زما نوکران شي او د ټولو تکليفونو بدل درنه په يو ځل واخلم، او دا درته اوښايم چې اصلي څيز علم نه دے، اصلي څيز دولت دے، چې ستاسو په شان قابلان ئې زما نوکران کړل-"
احسن ډېر په کبر سره لګيا وو او فرحان ضمير ئې ملامته کولو "نا احسن

صیب --! تاسو په غلطه یې، اصل دولت علم دے او د علم نه بغیر دولت هسې تش کاغزونه دي خو ستاسو په شان بې تعلیمه خلک په دې څه پوهیږي -'' فرحان هم د احسن په خوږو الفاظو کښې بې عزتې اوکړه خو احسن په دې خبرو ځان ناغرضه کړو او ورته وائي چې ''تاته پته شته چې د تا نه مخکښې کاشف، ذیشان، عدنان، ضیاد، عمران، اویس، امن او عمیر هم نوکرۍ له راغلي دي، ریحانه، نجمه، سمیره، عقیله او مناحل هم دلته نوکري کوي، د دغه کالج نه چې څوک فارغ شي نو زه به ئې د خپلو پېښو خاورې کومه، بس یو ته پاتې وې او زما هم دا ارمان وو چې ته هم دلته راشې او د ټول عمر بدله درنه واخلمه-'' ''اوه! بیا خو نوره هم ښه خبره ده، داسې ښکلې بدله خو زمونږ ارمان دے، خو دا راته اووایه چې زما کار به څه وي او تنخواه به مې څومره وي؟'' فرحان خیال وو چې احسن دوې سره هسې ګپ لګوي، لګ وخت له د فرحان نه د کور غمونه هېر شو او د کالج ملګرو په باره کښې ئې سوچونه شروع کړل-

''ستاسو په شان غریب خلکو له مونږ ستاسو د سوچ نه هم زیاته تنخواه ورکوو، تاسو پیسې سه لیدلې دي- بس شل زره (20000) روپې به ښه په وخت درکومه-'' د احسن خبرو نه فرحان ته احساس اوشو چې دوې په رشتیا زمونږ بې عزتي کول غواړي- خو بیه هم فرحان ملګرو سره یو ځائے کار کولو او د کور حالاتو له وجې کار ته غاړه کیښوده- ''او رشتیا ستا کار به صرف میلمنو له چائے پخول یې-'' د احسن په دې خبره فرحان له بې حده غصه ورغله خو ځان ئې په قابو کښې کړو او وئیل ''سر--! بې ایس سافټ وئیر انجینئر یمه -- د لګ کار په ځائے رانه ډېر کار واخلي خو داسې خو مه کوئ-'' ''نو په دې کښې د خفګان سه خبره ده، ستا کار خو ډېر د عزت دے او نور ملګرې خو دې څوک جارو وهي، څوک باتهرومونه صفا کوي، څوک کپړې وینځې او دا رعایت ستا د پاره څکه

دے چې يو څل دې راته په پرچه کښې يو سوال ښودلے وو۔" احسن مسکے شو او د فرحان مخ د غصې نه تک سور شو۔"دغه يو سوال په خودلو باندې هم زما ضمير ما ملامته کوي۔ ما کله هم دا سوچ نه وو کړے چې ته به دومره د احلاقو دائرې نه لويدے انسان يې۔" فرحان په غصه کښې روان شو، احسن ورته آواز اوکړو چې "خير يو دوه ورځې پرې سوچ اوکړه زما زړه ډېر غټ دے، نوکرې که دې خوښه وې نو بيا به هم درکم او چائے اوڅکه څکه چې بيا به مونږ ستا د لاس چائے څکو۔

فرحان ډېر په غصه د احسن دفتر نه اووتو خو په ريسيپشن ناسته جيني ورته په لار کښې اولاړه وه، ورته ئې اووئيل "سر! پليز ماسره يو دوه خبرې اوکړه، پليز!—" فرحان د غصې د وجې هيڅ او نه وئيل خو لگ شانتې په مزه شو او جيني ورته وائي چې "سر زه نجمه يمه، ما هم په دغه کالج کښې سبق وئيلے دے، ستا د کور د حالاتو ماته پته ده، د خور ارمانونه دې پوره کړه، د پلار علاج دې هم درته په غاړه دے، او ستا هم ډېر ارمانونه دې خو دې غربت خندا ته نه ئې پريښے، پليز سر! ز مونږ د کور هم دا حالات وو۔" فرحان د نجمې په خبرو ډېر حيرانه وو او ډېر په غور سره ئې د هغې خبرې اوريدلې۔ "سر! که ستاسو پلار ته پته اولگېده چې نوکرې درته ميلاو نه شوه نو زړه به ئې تق اوچوي۔" نجمه داسې لگيا وه لکه چې د ماشوموالې نه فرحان سره راغتېه شوې وې او يا ئې څه نزدې رشته داره وي۔ "نو زما پلار خو به د غم نه مړ شي که دا پته ورته اولگېده چې زه دلته چائے پخومه۔" فرحان په وړومبې څل خبره اوکړه۔ "ستا پلار ته به هيڅ پته نه لگي، دا ځائے د کلي نه ډېر لرې دے، دلته نوکرې کوه او نورو ځايونو کښې کوشش کوه چرته ښه نوکرې به درته ميلاو شي، او بله دا چې دلته هيچه ته پته نه لگي چې دلته څوک څه کار کووي۔ چې څوک دلته راشي نو داسې محسوسوي چې گنې دا ټول کلاس فيلو دي او لکه د

هاسټل په شريکه کار کوي." نجمي فرحان په نوکري کولو باندې راضي کړو اؤ د "رارون وخت" سوچونه ئې کول. فرحان هم د نجمي د خبرو نه ډېر متاثره شو اؤ ډېر په مينه ئې نجمي ته اوکتل چې ستا څنګه خوښه وي وس به هغسې کومه. نجمه په سوچ کښې ډوبه وه چې کومه بۀ هغه ورځ وي چې ته زما په خوښه جوند کوې. نجمه ډېره زياته خوشحاله وۀ، هغې په ورومبې نظر ليدو باندې فرحان ب ې زړۀ بائللے وۀ، اؤ دا ئې ارمان وۀ چې فرحان دلته نوکر شې. دواړه په ګپ شپ لګيا وۀ چې چائے راغلے اؤ ورسره د فرحان ټول ملګرې هم راغلل. فرحان د دفتر په ټولو حالاتو پوهه وو ځکه په خندا شو اؤ ورته وائي چې "ماته هم د چائے پخولو نوکرې ميلاؤ شوه، څه بۀ درسره صفائي کومه، کپړې بۀ وينځمه اؤ تاسو به هم کله کله ماسره چائے پخوئي." ټول پۀ خندا شو، نجمه هم د "ښۀ وخت" په سوچونو کښې ډوبه وۀ.

وخت تيريدو سره سره بۀ احسن ته د فرحان اؤ د هغه ملګرو غصه زياتيدله ځکه چې احسن بۀ خپل کبر اؤ بې عزتي کولو کښې زياتوالے راوستو خو احسن د فرحان د احلاقو نه ډېر متاثره وو، فرحان سره بۀ ئې ډېره ګزاره کوله. بيا هم فرحان خپله اؤ د ملګرو بې عزتې کله هېرولے شوه کومه به چې احسن هره ورځ کوله. فرحان د احسن نه پوره معلومات اوکړه چې دا کمپنې ئې څنګه جوړه کړې، په ټوله طريقه ئې ترې ځان پوهه کړو، اؤ يو منصوبه ئې جوړه کړۀ خو د وخت پۀ انتظار وۀ.

يو ورځ احسن د ملک نۀ بهر څه کار پسې لاړے، هم دا موقع وۀ چې فرحان د ټولې کمپنې ملازمينو له پاره يو پروګرام اوکړو اؤ هغوې ته ئې خپله منصوبه مخې ته کړه. ټول ملازمين د دې ورځې په انتظار وۀ خو يو ښۀ ليډر اؤ ښۀ منصوبه ورته نه وه معلومه. احسن چې راغلے نو ټولو

ملازمينوله ئې د تېرې دوه مياشتو تنخواه ورکړه، هم په دغه ورځ ټولو استعفي هم ورکړه او يو دفتر ئې هم د مخکنبې نه په کرايه نيولے وو.

احسن ته د ملازمينو په استعفي ډېر تکليف اورسيدو. په سوالونو مينتونو ئې د دوي راضي کولو کوشش اوکړو خو ناکامه شو. بيا ئې د عدالت دروازه اووهله خو هلته هم ناکامه شو. ځکه چې ملازمينو عدالت ته اووئيل چې مونږ دوه مياشتې مخکنبې استعفي ورکړې او د دې ګوهان او ثبوتونه هم شته. د احسن کمپنې په يو ورځ په ځائے کيناسته. نور سټاف اخستلو کنبې د مياشت نه زيات وخت اولګيدو خو بيا ورته پراجيکټ نه ميلاويدل ځکه چې فرحان او د هغه ملګرو نورو کمپنو سره د مخکنبې نه معاهدې کړې وې.

بل طرف ته امن اينډ کمپنې ورځ په ورځ ترقي کوله. احسن سوال ته کيناستو او د هر څه بائيللو نه روستو ئې ''امن اينډ کمپنې'' ته د نوکرې د پاره درخواست ورکړو. هغوي ئې درخواست قبول کړو او احسن ته ئې اووئيل چې مونږ ستا په شان ظالمان نه يو. چې کوم کار کولے شې هغه کوه. احسن په خپله خونبه جارو رواخسته او وئيل ئې چې ''دې کار نه علاوه بل هيڅ کار نه شمه کولے.''

''امن اينډ کمپنې'' ټول ملازمين ناست وو او د احسن کبر او غرور او لاچارې ذکر ئې کوو. نجمه ګويا شوله چې ''په احسن ستاسو د ټولو غصه يخه شوه که نه؟'' ''او او...'' ټول په خندا شو. ''خو-لا زما غصه نه ده يخه شوې.'' ټول حيران شو او په يو ځل ئې اوئيل چې ''څه مطلب...؟؟'' ''مطلب دا چې اصل کنبې احسن زما د ماما ځوې دے او په ماشومتوب کنبې ورسره زما کويزدن شوې وه. خو بيا هم ئې سره د رشته دارې او د بي ايس (هانر) سافټ وئير اينجينئر ډګرې زما دومره بې عزتې اوکړه.'' د نجمې په دې خبره ټول حيران شو. ځکه چې د نن ورځې پوزې

هیچا ته دا پته نه وه چې احسن د نجمي د ماما څوی دے او کویزدن ئې ورسره هم شوې ده. "زهٔ غواړم چې کویزدن ورسره هم ماته کړم. څو ستاسو د مرستي به حاجت وي، او که تاسو مرسته او نکړه نو بیا زه دا کمپنی پریدمه." ټول په خندا شو او یویو ورته اوئیل چې "څنګه ستا خوښه وي هغسې به کیږي، ز مونږ د ټولو غصه یخه شوې او ستا غصه بهٔ هم سړه وو." نجمي اوئیل چې "اخیري ره کومه چې زه احسن سره کویزدن ماتومه څو فرحان بهٔ ماسره نکاح کوي. نو هله بهٔ مې څوا یخه شي، بس--" ټول حیران شو او بیا لږه موده پس د نجمي غصه هم یخه شوه.

......***......

# قیصه بر

(خاکه)

ګل محمد بېتاب

د مېاندو او نیاګانو قیصې مو یادې دي چې خپلو ماشومانو ته به ئې د شپې کولې او ماشومان به هله اوده کېدل چې قیصه به ئې واورېدله عجیبه خبره به دا وه چې کومې قیصې کېدلې نو هغه به د بادشاهانو، شهزادګانو او شهزادګو وې. بلکه د هرې قیصې د پاره به بادشاه ضروري وه. بیا د هغه بادشاهانو طبعیتونه به هم ډېر عجیبه وو څهٔ ناویاته فرمائشونه به ئې کول. اکثر به شهزادګان د پیریانو، دیوانو او جادوګرو سره جنګېدل د هغه دیوانو خصوصیات چې به قیصه کښې راغلل نو ډېر ویرونکي به وو خو شهزاده به د کوم غیبي مدد په وجه د دوي مقابلې کولې. کله کله خو به یو ماشوم نیم تپوس اوکړو چې دا شهزداه ولې نهٔ مري ځکه چې داسې دیوان هم دې قیصو کښې وو چې زرمنه ګرز به په اوږه ګرځولو خو مېاندو او نیاګانو به ورته په جواب کښې وئیل بچے د قیصې شهزاده نهٔ مري. بس بیا به چا اعتراض نشو کولے. دې قیصو او داستانونو کښې ډېر داسې کارونه کېدل چې انساني عقل ئې منلو ته نشو جوړیدلے خو بس د وخت تېرې یوه ښهٔ ذریعه وه او انجام به ئې ښهٔ وهٔ ځکه نو هر څهٔ به چې قیصه کښې وو مجال دے که چا پرې اعتراض کړے وهٔ. تر دې چې په یو داستان یا قیصه کښې به هر څومره مبالغه وه نو خلقو به پرې هېڅ نهٔ وئیل بلکه دا هر څهٔ به ئې په شوق اورېدل. مثالونه ئې ډېر دي خو یو به ترې ذکر کړو چې د مبالغې بهترینه نمونه ده. لکه یوه ښځه پېرۍ یا ښاپېرۍ وه چې د هغې په تشو متیازو به اووهٔ ژرندې ګرځېدلې. نو اوس اندازه اولګوئ چې دې به اوبهٔ څومره څښلې. دا په یو شهزاده مئینه وه نو اکثر به ئې په بډه ګرځولو اوس د حیرانتیا خبره دا ده چې د

دې جامې به څومره وې خو سر دې اوخوري بس داستان يا قيصه وه نو. خېر يو خل شهزاده دې سره يوه کوټه کښې پروت وۀ دواړه اودۀ وو نو د پېرۍ يا ښاپېرۍ نه باد لاړل ورسره کوټه کښې طوفان راغلو شهزاده ئې اوچت کړو. کوټه کښې چې د لوګي د پاره کوم سُورے وۀ په هغې کښې پورته لاړو خدائے خبر چې څو شلې ميله لرې ئې غورځولے وۀ چې بيا ښاپېرۍ اوموندلو. دا قيصې او داستانونه به د کورونو سره سره حجرو کښې هم وئيلے او لوستلے کېدل. د مشرانو نه مو اورېدلي وو چې د فصلونو په وخت کښې به قيصه بړ راتلل او دوي به حجرو او درمندونو يا نورو لويو ډاګونو کښې قيصې کولې او خلق به ورته غوږ غوږ وو چې دوي له به ئې د دې په بدل کښې غنم. جوار. اوربشې. ګړه وغېره ورکول. دوي کښې به څينو سره د موسيقۍ يوه نيمه آله هم وه او اکثر داستان يا قيصه به ئې په نثر کښې بيانوله خو په مينځ مينځ کښې به ئې پکښې کله منظومه برخه د آلاتو سره په ترنم کښې وئيله خو د دغه مشرانو تر مخه د دوي د وينا انداز به داسې وۀ لکه چې چا به ترې رق نشو وهلے او د دوي د دلچسپ انداز له کبله به کله کله خو يوه قيصه دوي په هفتو هفتو اوروله. دغه قيصې به ترې سړو واورېدلې دوي به کورونو کښې ښځو ته اوکړې ښځو به د خپلو نورو قيصو سره په ذهن کښې جمع کړې او خپلو ماشومانو ته به ئې د شپې کولې. دغه هنر مند قيصه بړ مونږ نۀ دي ليدلي خو د نياګانو او مېاندو قيصې مې اورېدلې دي. ما به تل دا ارمان کولو چې کاش دغه قيصه بړو کښې مې چرته يو خو ليدلے وے يا ئې چا ريکارډنګ کړے وے نو څۀ خوند به ئې وۀ خو دا ارمان مې نۀ پوره کېدلو. البته ډېر په خوارِو مې د جديدې زمانې يو قيصه بړ پيدا کړے دے او زما يقين دے چې دۀ يا خو خپله دغه قيصه بړ ليدلي او يا ئې داسې څوک ليدلي دي چې د دغه قيصه بړو انداز ئې وۀ او دۀ ترې

استفاده کړې ده ځکه نو د هغوي انداز ئې خپل کړے دے. البته دا ته زما نه بدله شوې وه او د اوربدلو په ځاے خبره لیکلو ته راغلې وه. بله دا چې اوس هغه شان قیصې هم نۀ دي چې پکښې دې ماورائي مخلوق کارونه کړي بلکه د داستان نه خبره ناول ته رارسېدلې ده ځکه نو دۀ هم خپل فن د دې په ذریعه راښکاره کړے دے او د یو قیصه بړ په نامه ئې ځانله مقام حاصل کړے دے. دا ځانګړه یوه دلچسپه خبره ده بلکه حادثه ده چې دے ځنګه ناول نګار شۀ او ځنګه ئې دا فن راښکاره شۀ خو دا قیصه بړ مناسبه نه لري. د رخت چې اوياؤ دے د مضبوط او کوټلي وجود څښتن دے. ښکلې څهره ئې ده چې د ېږ خوږ دروند مشر مينه پرې ماتېږي. د خبرو انداز ئې هم ډېر زړه راښکون لري خپله وائي او بل ته هم غوږ ږدي. آواز ئې هم درميانه دے. په قد برابر او ښۀ چاق چوبند ښکاري، د روايتي پښتنو مشرانو غوندې مهربانه او مشفق سړے دے. د چائے ډوډۍ هم مړنے دے او که څوک ئې مېلمه شي نو په قدر عزت کښې ئې هېڅ کمے نۀ کوي. د يارانو دوستانو سره تعلق په نره پالي. البته په وروستو کلونو کښې ډېرې ناستې او سوچونو د شوګر په مرض اخته کړے دے. ادبي غونډو او مجلسونو له داسې ډېر نۀ ځي خو بېخي ترې قسمي هم نۀ دے که چرته داسې خاص غونډه وي نو کله کله دوه څلور کاله پس پکښې حاضري لګوي. نور څۀ کار روزګار ئې شته نۀ ولې چې نوکرۍ نه پېنشني دے. دوه لوڼه او دوه ځامن ئې دي هغه ټول ئې وادۀ کړي دي نو بس نمسا نمسو سره مشغولېدل او جومات ته په باقاعدګۍ د تګ نه علاوه بس ليکل کوي. کېدے شي چرته پخوا به ئې مطالعه کوله خو اوس داسې خاص ډېره نۀ کوي بلکه ليکل ئې مشغله ده او کومې قيصې ئې چې ذهن ته راځي هغه د ناولونو په شکل کښې ليکي او که اوګورو نو ګرم ځکه نۀ دے چې په وروستي عمر کښې د کلي نه ښار ته راغلے دے نو دلته خو

هغه شان ماحول نشته چې ځوک دې حجرو کښې مشرانو یا همزلو سره قیصې کوي نو چې څهٔ ئې په زړهٔ وي هغه لیکي

دا قیصه بې د چارسدې ضلعې د شب قدر علاقې سره تعلق لري او بیا دغلته د هغه کلي دے چې د کانګړې په تس کښې تلے وهٔ اتفاق به ورته اووایو خو د بټګرام اکثر او سېدونکي چې زهٔ ئې پېژنم نو اکثر د بل په تس کښې وهلے شوي او په تکلیف شوي دي. دے هم د دغسې حالاتو سره ځو ځو ځله مخ شوے دے خو د ټولو نه اهمه واقعه پکښې دا ده چې د دهٔ د ترهٔ زوي پېښور ښار کښې ځوک وژلے وهٔ نو د قتل دعوه په ده هم شوې وه خو ښهٔ وه چې په خبر ترې خلاص شهٔ.

قیصه بې چې په کلي علاقه کښې لسم جماعت پاس کړو نو لکه د کلي علاقې د نورو ځوانانو غوندې د دوبۍ او نوکرۍ په چکر کښې شهٔ. دوبۍ ته په تګ ئې وس نهٔ راتلو نو د نوکرۍ په لټون کښې فوځ کښې بهرتي شهٔ. ایبټ آباد کښې شپږ میاشتې د ټرېنګ پوره کولو نه وروستو لاهور ته تللو. دېرش روپۍ میاشت تنخواه ئې وه ټولې روپۍ چې څهٔ ورسره پاتې وې هغه ئې مور له ورکړې وې چې هغې ورله پرې یوه سواتۍ ټوپۍ، نوې جامې، څادر او پنجه دارې څپلۍ اخستې وې څهٔ به ئې ترې ځانله لګولې وې او دېرش روپۍ ئې دهٔ له کرائې او خرچې له ورکړې وې. دهٔ چې نوې جوړه جامې واغوستې ټوپۍ ئې په ښکر کېښوده او څپلۍ ئې په یو خاص انداز په پښو کړې وې چې پیاړمې ئې ورله خلاصې پرېښې وې د بارک مخې ته برنډه کښې ناست وهٔ چې دې کښې حوالدار مېجر صېب حاضري اخیسته د پرویز نوم ئې واورېدلو خو دهٔ اووې دا به بل ځوک وي دې کښې ورته چا اووې چې هغه خو مخامخ برنډه کښې ناست دے. آواز ورته اوکړے شهٔ او چې دے ورتلو نو ځان ئې د دوړو نه بچ کولو خو چې ښهٔ سم د دوړو ځاے ته اورسېدلو نو حوالدار صېب ورته

حکم اوکړو چې په بازي نګرو راځه په فوځي نوکرۍ کښې د انکار ګنجائش خو وي نۀ نو په سرکونډو سرکونډو ور روان شۀ ټوپۍ، جامې ئې په دوړو اولړلے شوې څپلۍ ترې وتلې وې او لکه د خړ ګيدړ د حوالدار صبب مخې ته حاضر شۀ چې هغۀ ورته ډېر په طنزيه انداز کښې اووې خوند ئې درکړو که نۀ؟ خو دې قسمت ته ګوره چې څۀ موده پس ته بيا دغه او نور حوالدارن د دۀ شاګردان شول چې بيا به ورله دۀ دغه قسمه سزاګانې ورکولې- وجه ئې دا وه چې په هغه زمانه به اکثر سپاهيان ان پړه وو او دۀ خو د خوش قسمتۍ نه لسم جماعت پاس کړے وۀ- نوکرۍ ته د ايجوکېشن ټريننګ له لاړو دغه ټرينګ د پي ټي سي برابر وۀ چې بيا ايجوکېشن يونټ ته لاړو او هلته استاذ مقرر شۀ-

د فوځ نوکري ښه وي او کۀ بده خو پروېز شېخ له ډېره ښۀ شوه ولې چې په دغه دوران کښې ئې ايف اے او بي اے اوکړل څلور کاله اووۀ مياشتې پس ته چې ئې د فوځ نوکري پرېښوده او کلي ته راغلو نو په دغه سرټيفيکېټ پي ټي سي استاد بهرتي شۀ بيا ئې د ماشومانو سره کار شۀ او دۀ څۀ فرق ځکه محسوس نۀ کړو چې فوځ کښې هم منل وو او د استاد په حېث به ئې هم سکول کښې ماشومانو خبره منله ولې چې ماشومانو ته خو خپل د پرائمري استاد د سقراط او البېروني غوندې ښکاري او چې رشتيا خبره وي نو په هغه زمانه به ډېرو کمو استاذانو بي اے کړې وه بيا د تعليم محکمه کښې د نوکرۍ نه وروستو ئې ايم اے اردو اوکړه نو نشه ئې نوره هم اوچته شوه ځکه چې دا د هغه وخت ټولو نه اعلیٰ تعليم وۀ- دا حقيقت دے چې اوس هم د استاذانو تنخواګانې کمې دي خو په هغه زمانه کښې ګزاره هم پرې ګرانه وه ځکه نو ايران ته لاړو او هلته ئې څوارلس مياشتې تېرې کړې چې دغه سفر ورله زړۀ او ذهن ډېر روښانه کړل- د ايران مختلف ښارونه، وغېره ئې اوليدل او ډېر خوند ئې ترې

واخستو۔ واپسی کښې بیا درخواست ورکولو سره په زړه نوکرۍ بحال شۀ د ایران د رسمونو رواجونو وغېره پحقله ئې خپل یو ناول شپونکي کښې لیکل کړي دي۔ بهر حال دلته یوه ورځ چا اووې چې ایم اے انګریزي کول ګران کار دے خو دۀ دغه چېلنچ قبول کړو او انګرېزۍ کښې ئې ایم اے اوکړه۔ البته عجیبهٔ دا اوشوه چې د نن وخت دا نامتو ناول نګار پریوس کښې د ناول په پرچه کښې فېل شوے وۀ چې د فائنل سره ئې دغه د پریویس پرچه هم پاس کړې وه ظاهره خبره وه چې د ایم اے اردو او ایم اے انګرېزۍ نه پس ته به د دۀ خیالات بدلېدل خو مسئله دا وه چې کلې کښې اوسېدو او تنخوا ئې په حکومت اورېدله دغه ئې غنیمت ګڼلے وۀ ځکه نور د څۀ نه نۀ خبرېدو خو خیر په کال 1985ء کښې د تعلیم د محکمې د سبجېکټ سپېشلسټ پوسټونه اعلان کړي وو چې په هغې ئې خپله بهرتي کوله خو کله چې پروېز شېخ ورغلو نو هغه د ډائریکټرېټ بابو ترېنه د ایم اے سره د بي ایډ ډګري اوغوښته کومه چې دۀ سره نۀ وه او د دفتر نه نامراده را روان شۀ خو دغه نا مرادي ورله ښه شوه ولې چې اودرېدلو او د دغه درد او اضطراب په حالت کښې چارسدې ته په بس کښې روان وۀ چې واحد ګړهۍ پېښور ته اورسېدو نو زړۀ ئې راډک شۀ او د زړۀ د سوزه ئې دعا اوغوښته چې پکښې په غېر ارادي طور سره دا اووې خدایه پاکه یا خو راله دا د سبجېکټ سپېشلسټ پوسټ راکړې۔ یا راله واحد ګړهۍ سره باغ کښې جوړه دا بنګله او باغ راکړې یا مې مصنف کړې چې د خپلو خیالاتو اظهار کولے شم او یا مې لېونے کړې۔ بس چې کور ته اورسېدو نو د دعا یوه برخه ئې داسې قبوله شوه چې په پانو ئې لیکل شروع کړل او څلور میاشتو کښې ئې ناول په رف توګه تیار شۀ چې نامه ئې "توده بکره" وه بیا دریو څلورو

کلونو کښې نهٔ صرف ناول تیار شۀ بلکه ورسره ئې سي ټي او بي ایډ هم اوکړل د پبلک سروس کمېشن په ذریعه د انګریزي سبجېکټ سپېشلسټ مقرر شۀ او ګورنمنټ هائیر سکینډري سکول کښې ئې کار شروع کړو دا ئې لکه د دعا بله برخه قبوله شوه. پېښور کښې ئې د نوکرۍ په دوران کښې دوه درې کورونه اخیستي دي او که هغه خرڅ کړي نو کېدے شي د واحد ګړهۍ هغه باغ او بنګله به پرې اوشي بس صرف یوه خبره پکښې پاتې ده خدا ے پاک دې د لېونتوب نه ساتي البته که په ژور نظر ورته اوکتے شي نو د لېونتوب علامې هم پکښې شته چې د هغې ذمه دار نومووړے ترقي پسند لیکوال سلیم راز صېب او ورسره د دوي د علاقې نامتو لیکوال ډاکټر مصطفیٰ کمال دي هغه داسې چې په کال 1988ء کښې پروېز شبخ ورومبے او اخري ناول توده بکره چاپ کړے وۀ او نور په قلاره ناست وۀ خو په کال 2008ء کښې د نامتو لیکوال ډاکټر شېر زمان طائزي صېب د جنازې نه په واپسۍ کښې دوي دواړه دۀ پښې نمبر ۱ سکول پېښور ته ورغلل او ورته ئې اووې ستا څۀ خیال دے چې ګني پښتو کښې په یو ناول چاپ کولو تا ډیلے فتح کړو په دې خو دې ایله چل زده کړو شابه لیکل کوه او چاپ کوه دې وېنا سره دے لیکلو ته داسې ورلاندې وتو چې دا ئې د ژوند مقصد اوګرځولو او د خوش قسمتۍ نه ورپسې زر د نوکرۍ نه هم رئټائرډ شۀ نو بس په مخه لیکل کوي او چاپ کوي- دا دے شمېر ئې پنځویشتو ته رسیدونکے دے ولې چې ځلورویشت ئې چاپ دي او پنځویشتم ئې د سلور جوبلي په نامه چاپ کېدونکے دے- محترم سلیم راز صېب او مصطفیٰ کمال صېب ئې د ناولونو نه خبرېږي چې په مسلسله توګه چاپ کېږي خو نور دا غم ئې نۀ کوي چې مسلسل لیک ورله صحت تباه کړو- د ډېرې ناستې او سوچونو

په وجه ئې شوګر دے د پیسو نه خلاص شوے دے بلکه خبره ئې دې حد ته رسېدلې ده چې د پنشن روپۍ اخلي او پبلشرانو له ئې ورکوي ولې چې دۀ پرې د وړاندې نه ناول چاپ کړے وي دې صنف کښې لوے نوم لري او د ناول پنګه ئې تر ډېره حده درنه کړې ده پښتو کښې د ټولو نه د زیاتو ناولونو لیکلو او چاپ کولو ریکارډ ئې قائم کړے دے اوس د ناولونو معیار ئې څنګه دے نو دومره ډېر ئې لیکلي دي چې په دې کښې عامیانه، درمیانه او د اعلیٰ کچ تخلیقات شته څکه چې د اباسین آرټس کونسل او نورو ادبي ټولنو لخوا ورته وخت په وخت ایوارډونه ورکړے شوي دي۔ دغه شان د ژوند او فن پحقله ئې دوه کتابونه چاپ شوي دي چې یو شاعر، ادیب، افسانه نګار او محقق ایاز الله ترکزي صېب چاپ کړے دے چې نوم ئې دے "پروېز شېخ ژوند او فن" دې کښې دۀ هغه لیکونه راغونډ کړي دي کوم چې مختلفو لیکوالو د پروېز شېخ د ناول نګارۍ پحقله کړي دي۔ په دغه کتاب کښې ایاز الله ترکزي صېب تجویز وړاندې کړے وۀ چې د ډېرو ناولونو لیکلو په وجه دې پروېز شېخ ته شېخ الناول اووئیلے شي خو دۀ نه څو کاله پس ته نومورې لیکوال محقق ډاکټر نګاه حُسېن نګاه صېب ورته د بابائے ناول خطاب ورکړو۔ دۀ تر دغه دمه د پروېز شېخ په چاپ ناولونو تبصرې کړې دي او دومره په جوش کښې راغلے دے چې دا ئې هم لیکلي دي ژوندي خو پرېږده چې مړي هم د پروېز شېخ د ناولونو تپوس کوي بیا ئې د خوب یوه واقعه لیکلې ده۔ د ډاکټر نګاه حُسېن صېب دا خبره کۀ څۀ هم زما خوښه شوه څکه د پروېز شېخ په حق کښې ئې خو د دلیل په توګه ئې نشو منلے څکه خدا ے مۀ کړه که چرته سبا له بل څوک لیکوال یا خپله ډاکټر نګاه صېب داسې خوب اووینې چې پروېز شېخ سره د ناولونو په ناګمان لاهو کړئ نو بیا به څۀ کوو۔ خبر نۀ یم چې ډاکټر نګاه صېب ته به معلومه وه که نۀ خو د بابائے ناول خطاب

پېو کښې د کامل پښتو ادبي جرګې لخوا ډاکټر شېر زمان طائزي صېب
ته ورکړے شوے دے او باقاعده د ادبي روايت مطابق د يو قرارداد په
منظورولو دا کار شوے دے۔ اوس که مونږ د دغه ادبي روايت نه سترګې
پټوو نو بيا خو به ډېر باباګان سر اوخوري. پکار خو دا وه چې پرويز شېخ
له يو بل خطاب ورکړے شوے وے او پۀ دې حقله يو قرارداد منظور
شوے وے که داسې د يو تن دوه خبره شي نو ځوان ليکوال شاعر، محقق
او نقاد سميع الدين ارمان صېب چې څو اهم کتابونه ئې د تنقيد او
تحقيق چاپ کړي دي د پرويز شېخ يوولسم ناول "نيمګړي ارمانونه" د
بحث لاندې راوستے او ښخې د ناول د معيار نه ئې غورزولے دے بلکه تر
دې ئې ليکلي دي چې ليکوال د مذهب او رياست په سرسري نتائجو
بحث کړے دے خو د دې د تاريخيت په ارتقاء کښې د دوارو د مثبت
منفي کردار په ګوته کولو نه ئې ډډه کړې ده او هم دلته ئې ورسره سوال
پورته کړے دے چې دا د ناول غوښتنه ده، مصلحت دے، ادبي خيانت
دے او که انټليکچول ډس هانستي؟ چې ورسره زمونږ د دور يو بل نامتو
ځوان نقاد فېصل فاران يوه خُلۀ دے هغه د ښو ناولونو د مثالونو د پاره د
نصيب الله سيماب او ښاغلي حيات روغاني د ناولونو مثالونه ورکړي
دي کوم چې ډېرې واضحه او مقصدي مفکوري لري او يقيناً د پرويز شېخ
په ناولونو کښې دا قسمه خبرې نشته۔ نوموړي محقق او نقاد رشيد احمد
صېب چې څو کاله وړاندې د پښتو د ناولونو سل کلن جاج اخيستے او
خپل کتاب ئې پښتو ناول سل کاله چاپ کړے دے نو په هغې کښې ئې د
پرويز شېخ ناولونه نظر انداز کړي دي په دې وجه به ورته ما تل وئيل چې
تاسو يو داسې ناول نګار نظر انداز کړے دے چې تر اوسه ئې پښتو ژبه
کښې د ټولو نه زيات ناولونه ليکلي او چاپ کړي دي خېر هغۀ د دۀ د
ناولونو پحقله يوه مقاله اوليکله او "پښتون" مجله کښې چاپ شوه خو د

رشید احمد صېب په قول کله چې ما پروېز شېخ د دې مقالې د چاپ نه خبر کړو نو دغه ورځو کښې پرې د ډاکټر نګاه حسېن نګاه صېب کتاب چاپ شوے وۀ ماته ئې ډېر په لا پرواهۍ اووې په مقالو څۀ کوې اوس خو خبره کتابونو ته لاړه او زما توجه اوس مقالو ته نۀ بلکه کتابونو ته ده.

زۀ کولے شم چې د پروېز شېخ د اکثرو ناولونو په قیصو بحث اوکړم او خلاصې ئې وړاندې کړم خو خبره به اوږده شي البته په مختصره توګه به دا اووایم چې هغه داسې ناول نګار دے چې قیصه مخ په وړاندې بوتلي د کومې نظرئې یا مفکورې غم نۀ کوي بس قیصه شروع کړي او په خوند خوند مخ په وړاندې روانه وي او څو چې بنده پوهېږي نو قیصه سر ته رسېدلې وي. د پخوانو قیصه بړو غوندې وخت په وخت داسې واقعات رامخې ته کوي چې لوستونکے پرې مشغول اوساتي زما په خیال د ناول په پلاټ خواري کوي انجام ئې هم په خبر کوي خو چونکه ډېر وخت د ماشومانو استاد پاتې شوے دے نو د ناول لوستونکي هم ورته ماشومان ښکاري ځکه نو څۀ چې دۀ ته سم ښکاري هغسې ئې بیانوي دا غم ئې نۀ کوي چې د دۀ بیان ته لوستونکے ګوته نیولے شي چې دې کښې کردارنګاري کمزورې ده یا کومه مفکوره پکښې نشته بلکه د قیصې غوندې صرف بیان او واقعات په دلچسپه پېرایه کښې بیانوي. کله کله داسې هم اوشي چې د دود دستور او قانون مطابق چې څنګه خبره یا کار پکار وي هغسې نۀ وي خو چې څوک دۀ هغه ځاے په ګوته کړي نو ډېر په لاپرواهۍ سره اووائي چې دغه خبره پکښې شته خو تا به سمه لوستې نۀ وي او یا به پرې پوهه شوے نۀ ئې. دا علم، ادب پوهنه او ژوره مطالعه غواړي ما خو چې ترې څو څو ځله دا تپوسونه اوکړل او دۀ دغه شان جواب راکړل نو یوه پخوانۍ خبره رایاده شوه چې ما د مشرانو نه اورېدلې وه او د پروېز شېخ د دې جواب سره ئې څۀ نه څۀ تعلق شته نو

ځکه ئې بیانوم- وائي چې د یو بادشاه دربار ته یو سړے راغلو او د راتلو سره ئې بادشاه ته اووې صیب ما تا له یوه ناویاته تحفه راوړې ده- دا پټکے دے چې ستاسو په سر ئې ایښودل غواړم خو دا پټکے به صرف حلالي بندهٔ ته ښکاري حرامي ئې نشي لیدلے- تخت ته ورنزدې شهٔ او د بادشاه په سر ئې داسې کېښودلو لکه څوک چې پټکے د چا په سر ږدي- بیا ئې وزیرانو ته مخ راواړولو وې پټکے د بادشاه سلامت په سر څنګه ښکاري هر یو بې شماره ځل واه واه او نور د تعریف کلمات اووئیل سړي بیا د جېب نه شیشه راوویسته او بادشاه سلامت ته ئې مخې ته اونیوله- بادشاه هم د پټکي ډېر تعریف اوکړو- سړے د لوے انعام او اکرام سره لاړو- بادشاه کور ته لاړو او ملکه ئې خبر کړه هغې چې تفصیلات واورېدل نو هغې ئې هم ځهٔ ډېر تعریفونه اوکړل- بادشاه سره زړهٔ کښې فکر شهٔ ولې چې پټکے ئې نهٔ لیدلو خو د خلقو د ویرې ئې غږ نهٔ کولو خو آخر په دریمه ځلورمه ورځ ئې ملکې ته اووې چې دا پټکے خو ماته نهٔ ښکاري ملکې ورته اووې بادشاه سلامت چې پټکے وي نو تهٔ به ئې اووینې ما خو هم د ویرې غږ نشو کولے چې هسې نهٔ د حرامي توب فتوه راباندې اولګي بادشاه چې بهر دربار ته راغلو او وزیرانو ته ئې اووې نو هغوي هم اووې بادشاه سلامت د خپلې ویرې مو غږ نشو کولے- مونږه هم د دې ویرې په ځینو واقعاتو غلي شو چې هسې نهٔ د بې علمۍ او بې ادبۍ ټاپه راباندې اولګي ګني نو هغه خبرې پکښې د سره نهٔ وي- یوه خبره بله هم ما د پروېز شیخ صیب د ناولونو د لوستو په وخت محسوس کړې ده چې دے تادي کړے دے او کوشش کوي چې په منډه منډه قیصه سر ته اورسوي ګني نو ... ناول ... اوږده قیصه کښې ضروري وي چې لیکوال دې د ښو یا بدو پېښو د ... ره موزون حالات جوړ کړي خو پروېز شیخ د دې هر ځهٔ نه بې نیاز ... لکه د قیصه بړ دا هر ځهٔ په حادثاتي. اتفاقي او ډرامائي توګه کوي-

نورې خبرې ځکه نهٔ لیکم چې د پرویز شېخ د ژوند او فن پحقله د دوو کتابونو نه علاوه یو تن پرې د علامه اقبال اوپن یونیورسټۍ نه د ایم فل مقاله لیکلې ده او بل دا وخت د پېښور یونیورسټۍ نه پرې د پي ایچ ډي د کچ مقاله لیکي۔ اُمید دے چې دوي به پخپلو خبرو کښې دا هر څهٔ رانغښتي وي۔

پرویز شېخ په عام ژوند کښې ساده باده سړے دے هېڅ چل ول پکښې نشته ورسره یو جذباتي انسان دے په ورو ورو خبرو خوشحالېږي او خفه کېږي۔ کله کله خو د دې جذباتو په وجه تېروځي او بیا ورته سمه خبره هم ورانه ښکاري لکه تېر کال د تاني ادبي جرګې ملاکنډ لخوا په کتابونو ایوارډونه ورکړے کېدل نو د دغه جرګې سېکټر نوموړي لیکوال فضل معبود صائم ماته اووې چې تهٔ به د پرویز شېخ صېب سره یو ځاے راشې ځکه د هغهٔ کتاب یعني ناول د ایوارډ د پاره منتخب شوے دے۔ ما پرویز شېخ ته اطلاع ورکړه خو دهٔ چې کله د صائم صېب نه تپوس کولو نو هغه د پروګرام جوړولو کښې مشغول وهٔ اصل خبره تري هېره شوې وه خو چې د ججانو رپورټونه ئې اوکتل نو ورته ئې مېسج اوکړو چې شېخ صېب ستا ایوارډ نشته وروستو چې ورته یاد شوي وو نو دوباره ئې ورته مېسج کړے وهٔ چې ایوارډ دې شته وجه ئې دا وه چې د دهٔ ناول خو هډو ججانو ته ځکه نهٔ وو لېږلے شوے چې د بل چا ناول موجود نهٔ وهٔ نو بلا مقابله د ایوارډ حقدار وهٔ خو دے دومره جذباتي او غصه شوے وهٔ چې ایوارډ شته هم ورته نشته ښکارېدلو دغه شان یو ځل ورته چا وئیلي وهٔ چې یو ملګري د ایاز الله ترکزي صېب په دکان اعراف پرنټرز کښې ستا په ناول نګارۍ خبرې کولې چې پرویز شېخ ښهٔ ناولونه نشي لیکلے بس خو څهٔ قیصې میصې اولیکي او چاپ ئې کړي۔ په هغه سړي خو ئې وس نهٔ رسېدلو نو د ایاز الله ترکزي صېب نه زړهٔ بد ے شهٔ او بهانه

ئې ورته دا اوکړه چې ستا د کمپوزنګ نرخ ګران دے چې بیا ورله ما روغه کړې وه-

پرویز شېخ خپلو ناولونو له شاعري هم د ضرورت مطابق خپله کوي او دغه شعرونه ئې که ډېر ښۀ نۀ دي نو بد هم ورته نشو وئیلے د دې مطلب دا شه چې په دۀ کښې پټ یو شاعر شته کوم چې دۀ پخپله غلے کړے دے او باقاعده غزلې یا نظمونه ئې یا خو نۀ دي لیکلي او یا ئې چرته اورولي او چاپ کړي نۀ دي خو د نورو په شعرونو ډېر ښۀ پوهېږي-د ناولونو نه علاوه ئې یوه ډرامه لوبه د پېسې ده- او یو انګریزي کتاب لیکلے او چاپ کړے دے

دې نه علاوه وخت په وخت ئې د پښتو نه انګرېزۍ ته ترجمې کړي دي چې په معتبرو مجلو کښې چاپ شوي دي

لنډه دا چې پرویز شېخ د ناول په مېدان کښې دومره کار کړے دے چې تر اوسه ئې څوک سیال نشته دا ناولونه به ئې تل تر تله ژوندي ساتي او زما د پاره خو دا خبره پوره ده چې په هغۀ مې د پخواني قیصه بر مینه ماتېږي تاسو ته هم دا مشوره درکوم چې یو ځل ضرور دا قیصه بر اووینئ ګني بیا به ارمان کوئ

......***......

# رحمان بابا او سرمایه دارانه نظام

ډاکټر حنیف خلیل

رحمان بابا په یو داسې دور کښې ژوند کولو چې چارچاپېره ترې د سرمایه دارانه نظام لړې خورې وې او دغه نظام معاشره په خپل ګرفت کښې اخستې وه. رحمان بابا د یو باشعوره دانش او شاعر په حېث د دغه نظام په حقله خپله شاعرۍ کښې ډېرې واضحه اشارې کړې دي. او د سرمایه دارانه نظام خورېدونکو سماجي بیمارو نقصانونه او د انسانیت تذلیل ئې هم په ګوته کړے دے. نۀ یواځې دا بلکه د دغه ګبر انساني نظام نه د خلاصي تجویزونه او د اعلیٰ انساني معاشرې د تشکیل په حقله ئې هم په شاعرۍ کښې ډېرې ښکاره خبرې کړې دي.دغسې هغۀ ته که د انسانیت شاعر وئیلے شي نو د دې پس منظر کښې مونږ ته ښکاري چې یو خوا خو هغه د هر قسمه نسلي، عقیدوي او مذهبي تفریق نه علاوه د عالمګیر انسانیت د خېر ښېګړې او خوشحاله ژوند خبره کړې ده نو بل خوا ئې د یو داسې انساني معاشرې د تشکیل ارزو هم لرلې ده چې پکښې د انسانې، وقار احترام، امن همدردۍ او وروروولۍ اقدار وده مومي. د رحمان بابا دغه سماجي او سیاسي شعور باوجود زمونږ اکثر لیکونکي د هغۀ د شاعرۍ مرکز ترک، دنیا، تصوف او انساني معاشرې نه فرار ګڼي. د هغۀ د شاعرۍ مطالعه که په دې تناظر کښې وشي چې هغۀ د انساني معاشرې، اقتصادي او سیاسي، نظام او انساني رشتو د وقار په حقله څۀ وئیلي دي. نو په اسانه به جوته شي چې رحمان بابا د ټولو انساني مرضونو جرړه د سرمایه دارۍ، جاګیردارۍ او معاشي نظام نا سمے بللے دے. د رحمان بابا د شاعرانه افکارو د جائزې نه وړاندې باند چې د سرمایه دارانه نظام نوې اصطلاح او تعریف ته هم غور وکړؤ او بیا وګورو چې رحمان بابا په کوم دور کښې د دغو نوو اصطلاحاتو سره برابر د سرمایه دارانه نظام مخالفت کړے دے.

د سرمايه دارانه او جاګيردارانه نظام اصطلاحات او تعريفونه د رحمان بابا د دور نه ډېر وروستو عموماً د اشتراکي نظرياتو منونکو دانشورو تشريح کړې دي. هسې خو مونږ وئيلے شو چې د سرمايه دارانه نظام جرړې د ډېرې مودې نه په دې معاشره کښې موجودې دي. د دې نظام تر مخه د سرمائې او دولت د غلط استعمال. د سرمائې صرف يو څو کسانو پورې محدود کېدلو او عام اولس د استحصال په وجه په معاشره کښې انتشار. ظلم. جبر. بې انصافي او سماجي لرے برے سر ښکاره کوي. او دغسې په معاشره کښې آباد انسانان د بې اطيمنانۍ ښکار کېږي. ځکه د سرمايه دارانه نظام مخالفت په هر دور کښې د ويخ ضمير خاوندانو دانشورو کړے دے

سرمايه دارنه نظام له پاره په انګرېزۍ کښې د (Capitalism) اصطلاح وضع کړے شوې ده. د (Capitalism) تعريف او وضاحت نوېمالے دانشور شيخ محمود احمد په خپل کتاب (Economics of Islam) کښې د انسائيکلوپيډيا برټېنيکا په حواله داسې کوي

"Capital may be most briefly described as wealth used in producing more weath, and Capitolism is the System directing that process, is the definition of Capitalism gineu by Encyclopaedia Britanica, the term of socialistic originz. It gained currency towords the second halt of the nineteenth Contuary denotes the world wide process of organizing production or trate on individualistic bases. Men wealth, but mowre often utilizing money borrowed on interest, seak Porfit and tortune for themselves by employing the mass of human lebowr for weges"[1]

ترجمه: "د سرمائې (Capital) تعريف په دې توګه کېدے شي چې دولت د

[1] Sheikh. Muhmmad Ahmad. Economics of Islam. Asharaf Publisher Lahore. 1997. P.1

زیاتولو د پاره استعمال کښې راوستے شي۔ د سرمایه دارنه نظام تعریف انسائیکلوپیډیا تریتانیکا داسې کړے دے چې دا په اصل کښې یوه سماجي اصطلاح ده۔ کله چې د نولسمې صدۍ په دویمه نیمه کښې د دولت یو ځائے راجمع کېدل شروع شو او صنعت او تجارت شخصي لاسونو ته راغلو او په دولت د زیاتي نه زیاتې ګټې د پاره هڅې شروع شوې او دې غرض د پاره د انساني محنت استعمال شروع شۀ نو سرمایه دارا ظام سر ښکاره کړو۔

دغه سرمایه دارانه نظام دے چې تعلیم یافته او مهذبه معاشره کښې په هر دور کښې غندلے شوے دے۔ او اسلام هم د سرمائې د جمع کولو او د محنت کش او خواري کښ د استحصال کولو مخالفت کوي۔ په قرآن حکیم کښې د دولت د جمع کولو غندنه شوې ده۔ د حضورؐ پاک ژوند پخپله د سرمایه دارانه نظام د نۀ منلو د پاره یو غوره مثال دے۔ د صحابهؓ کرامو ژوند د تاریخ په پاڼو کښې محفوظ دے چې د خپلې حکمرانۍ په دور کښې ئې هم غریبانه ژوند تېر کړے دے۔ وروستو په دیني دانشورو کښې شاه ولي الله اقتصادي فسلفه د سرمایه دارانه نظام واضح مخالفت کوي۔ او دغسې چې خبره جدید دور ته رارسېدلې ده نو په هم دغه بنیادونو د اشتراکي نظریاتو خورونکو د سرمایه دارانه نظام سخت مخالفت کړے دے۔

نومیالے اشتراکي دانشور میګسم ګورکي په خپله یوه مقاله کښې دغه نظام غېر انساني ګڼي او لیکي:

"The assertion that "Warbreads heroes"that it includes fearless, only Shows that the bourgeois Philosophers and moralists cannof distinguish Tearleisness from Shainelessness and in humanity. . . . Peace time as we know is more and more difenitely assuming the characfer of Contiruous and bitter war of the master class against the warking class"[2]

[2] Gorky. Maxim. Articles and pamphlets. ferigh Language Publishing house Mascow. 1951. p. 168. 169

ترجمه: "دا بیان چې "جنګونه اتلان زېږوي" کۀ د کومې وېرې په نظر کښې ساتلو سره ورکړے شوے وي نو دا بیان بیا دا ښائي چې بورژوا (سرمایه دار) دانشوران او د اخلاقیاتو رهبران د وېرې او شرم یا غېر انساني روئې تر مینځه فرق نۀ شي کولے۔۔۔۔۔۔ مونږ ته معلومه ده چې د محنت کشې طبقې لخوا د سرمایه دارې طبقې خلاف جدوجهد په اصل کښې د یو پُرامن معاشرې د قیام سبب جوړېږي"

د سرمایه دارانه نظام د دغه وضاحت نه پس مونږ په دغه تناظر کښې د رحمان بابا شاعرۍ ته ځیر کېږو او دا ګورو چې هغه د عالمګیر انسانیت او اسلامي اصولو په نظر کښې ساتلو سره سره د یوې خوشحاله انساني معاشرې د پاره سرمایه دارانه نظام څومره مهلک او خطرناک ګڼلے دے۔ زمونږ ترقي پسندو دانشورو د رحمان بابا لخوا د سرمایه دارانه نظام دغه مخالفت د ترقي پسندې شاعرۍ یو اهم جُز ګڼلے دے او بیا ئې د اشتراکي نظریاتو په تناظر کښې د هغۀ د شاعرۍ جائزه اخستې ده۔ دې لړ کښې ښاغلي فضل حق شېدا د رحمان بابا د شاعرۍ په حقله لیکلي دي۔

"زړۀ مې په دې خوشحاله شۀ چې د رحمان په کلام کښې مې د ټولو نه اول په دولت او دولت مندو خلقو زبردست تنقید ولیدو۔ څومره اوښیار وۀ دغه سړے او څومره باریک نظر ئې لرۀ۔ د خانۍ په کور کښې پېدا دے لیکن د دولت د راغونډولو دومره مخالف دے چې د کارل مارکس مریدان هم ورته حېران دي"[3]

نومیالے دانشور کاکا جي صنوبر حسېن مومند هم د رحمان بابا شاعرۍ ته په دغه تناظر کښې ګوري او لیکي۔

"رحمان بابا د مغلو په جاګیردارانه ملوکیت کښې پېدا دے هغه وخت کښې

---

[3] شېدا. فضل حق. مکتوب. مشموله. میاشتے. اسلم پښتور (رحمان نمبر) اپریل. مئي ۱۹۵۱ء، ص، ۹

د نن په شان کارخانې نهٔ وې یعني سرمایه دار له د حکومت واګي لاس کښې نهٔ وې اخستې بیا هم د رحمان بابا دا شعر

د یــــــوې کېــــــدې د پـــــاره
هــــزار خـــونې کـــړي بېــــدیا

بالکل په موجیوده سرمایه دارانو منطبق کېږي. یو سرمایه دار په کارخانه کښې په زرګونو مزدورانو نه فائده اخلي حال دا دے چې هغه زرګونه مزدوران په ژوندوني مړه دي۔[4]

د سرمایه دارانه نظام دغه پس منظر ته که ځیر شو نو معلومه به شي چې د نړۍ په هره تولنه کښې جاګیردارانه ذهنونه، جاګیردارانه ماحول پېدا کوي. او دغه شان ورته وده هم ورکوي. ځکه چې د هغو مفاد دغه ماحول سره تړلي وي. په هره تولنه کښې چې د عمومي او عوامي مفادو ځاے ذاتي او انفرادي ګټه ونیسي. وګړي د جهان په ځاے د ځان فکر شروع کړي نو جاګیردارانه ذهنونه هم خپل کار شروع کړي.

دین اسلام ځکه د دې قسمه نظآم او ذهنیت تردید او خاتمه کړې ده. ځکه چې په داسې نظام کښې په تولنه کښې د خوشحالۍ په ځاے انتشار او بدامني پېدا کېږي.او اسلام دا نهٔ غواړي.

رحمان بابا د دینِ اسلام د روح پښتون ترجمان ثابت شهٔ هغهٔ چې په کوم دور کښې ژوند کولو هغه په مکمله توګه د جاګیردارۍ او سرمایه دارۍ دور وۀ. او د مغلو حکمرانۍ د ملوکیت د دور یاد تازه کړے وۀ. په هندوستان د بابر زوي همایون، د همایون زوي اکبر د اکبر زوي جهانګیر، د جهانګیر زوي شاه جهان د شاه جهان زوي اورنګزېب او د اورنګزېب زوي شاه عالم پرله پسې حکومتونه کړي وو او کول ئې. په داسې حالاتو کښې یو

[4] حسین، صنوبر. رحمان بابا د خپل وخت ترقي پسند وۀ. مشموله. میاشتینۍ. اسلم پېښور (رحمان نمبر) مئي. ۱۹۵۲، ص ۷۷

خوا که خوشحال خان ختټک د خپل ژوند ورومبۍ زیاته برخه د مغلو په خدمت کښي تېره کړې وه نو بل خوا رحمان بابا د خپل وخت حضرت ابوذر غفاري ثابت شۀ او په جاره ئې د مغلو د ملوکي نظام حکومت او سرمایه دارانه ماحول خلاف اواز پورته کړو. دغه شان ئې د اورنګزېب او شاه جهان شرافت چلېنج کړو او وې وئیل چې.

اورنګزېب او شاه جهان غونـدې اشـراف
صـدقه شـه تـر منصـور غونـدې نـداف[5]

د اعلي انساني خصوصیاتو، انساني همدردۍ، خېر، ښېګړې، مینې، ورورولۍ او امن درس ورکوي او د کرکې، نفرت جنګ او انسان دشمنۍ نه خلق منع کوي او هم دغه د انساني شرف او وقار معیار ګڼي او وائي.

کـر د ګلـو کـړه چـې سـیمه دې ګلـزار شـي
اغـزي مـۀ کـره پـه پښـو کښـې بـه دې خـار شـي
تـۀ چـې بـل پـه غشـو ولـې هسـې پـوهـ شـه
چـې هـم دا غشـے بـه سـتا پـه لـور ګـزار شـي
آدم زاد پـــه معنـــی واړه یـــو صـــورت دے
خـــوک چـــې بـــل آزاروي هغـــه ازار شـــي[6]

انسان په بل انسان زور ظلم د وسائلو او سرمائې د تر لاسه کولو د پاره کوي او رحمان بابا د دغه زور او ظلم غندنه کوي. ظالمان که حکامن او سرمایه دار وي او که نور خو رحمان بابا ئې غندنه کوي. ځکه چې ظلم همېشه په ټولنه کښې اړے ګړے او بدامني پېدا کوي. او دا ظلم که د حاکمانو او سرمایه دارو له خوا اوشي نو نتیجې ئې لازیاتې خطرناکې وي ځکه چې د حاکم مفاد د عام انسان

[5] رحمان بابا. د رحمان بابا کلیات. مرتبه حنیف خلیل، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴ل ۲۰۰۵ز، ص ۱۸۱

[6] ایضاً ص ۳۵۹، ۳۶۰

نه ډېر زیات شدید وي. او د دغو مفادو د پاره هغه په ډېره غټه د انساني زیان نه هم مخ نهٔ اړوي. څکه رحمان بابا په ډېر جرات سره وائي چې.

پــــه ســــبب د ظالمــــانو حاکمــــانو
ګــور او اور او پېښــور درې واړه یــو دي[7]

دا د هغه وخت ترجماني ده چې د اورنګزېب عالمګیر د وفات نه پس د هغهٔ زامنو د اقتدار د ترلاسه کولو او په وسائلو او سرمایه قبضه کولو د پاره پېښور سُور اور کړے وهٔ. رحمان بابا د هغوي تر مینځه مشهور د "جاجو" جنګ ته اشاره هم کوي او د ګل خان جمال خان د واقعې په بیان کښې د اورنګزېب عالمګیر د زامنو تر مینځه دغه شخړې ته هم اشاره کوي. وائي.

شـاه عـالم ظلـم اوکـوره چـې ئـې سـخا کـړو
پــه خونونــو واړه ملــک د هندوســتان[8]

د وسائلو قبضه کولو او اقتدار نیولو دا لوبه د شاه عالم اعظم تر مینځه څکه روانه وه چې هغوي ته معلومه وه چې د هغوي پلار اورنګزېب عالمګیر هغه عالمګیر چې د خپل پلار شاه جهان د حکمرانۍ په دور کښې ئې د قرآن حکیم په کتابت کولو ګټلې د مزدورۍ پیسې د خپلې ذاتي خرچې د پاره استعمالوي خو د سرکار خزانه ئې خپلو ذاتي مفادو د پاره نهٔ استعمالوله، هغه اورنګزېب چې د فقیرۍ ټوپۍ ئې په سر وه، هغه هم د اقتدار نیولو د پاره خپل پلار بندي کړو او ورونه ئې ووژل. او دغه شان د امیرالمومنین په کرسۍ کښېناستو رحمان بابا د اورنګزېب په دغه انداز او روئیه په خپله

[7] ایضاً ص ۳۵۰
[8] ایضاً ص ۲۳۸

هغه مرثیه کښې ګویا دې کومه نې چې د اورنګزېب په وفات لیکلې ده.
رحمان بابا وائي:

اورنګزېب هم یو فقیر وۀ — چې توبې ئې وه په سر
وتوبې وته ئې شاه کړه — چې قادر شۀ په افسر
خو ئې هومره فقیري وه — چې څۀ نۀ وو میسر
ګوره څۀ چارې ئې وکړې — په عیال د خپل پدر
وار په وار ئې تر تېغ تېر کړل — د خرم تمام تبر
یو تبر د خرم څۀ وۀ — ډېر عالم ئې کړه ډېر
تمامي جهان ئې ونغړد — چې ئې لاس شۀ باندې بر
له حرصه هیڅ شۀ — هم دارا هم سکندر
خیال ئې دا وۀ په خاطر کښې — چې به خپل کړم بحرو بر
باري ورځ ورڅخه لاړه — وخت پرې راغے مازیګر
اوس ئې زۀ په روح دعا کړم — که ئې خدے کا بهرور[9]

دا دغه مرثیې څو انتخاب شعونه دي چې د اورنګزېب عالمګیر په حال وئیلے شوې دي. د رحمان بابا په خیال د آدم زادو دغه د یو بل ازارول، د حاکمانو دغه زور ظلم. او فساد او انتشار خورول او د حرض او لالچ نه ډک ژوند. د دې هر څۀ اصلي محرک د ملوکی نظام رواج او د سرمایه دارۍ یا جاګیردارۍ نظام دے. ځکه هغه د دولت جمع کولو نه نفرت کوي او ځان د پاره صرف دومره دولت غواړي چې د دلبرو صدقه ئې کړي هغه وائي.

د دلبرو صدقې له ره ئې غواړم
هسې نۀ چې په دنیا پسې زهیر یم[10]

او د دولت او سیم و زر جمع کوونکي ته وائي.

---

[9] ایضاً ص ۱۳۲ تا ۳۶

[10] ایضاً ص ۲۱۹

تــهٔ چـــې هـــره ګـــړۍ غـــم د ســـیم و زر خـــورې
زهٔ دې هـــره ګـــړۍ ویـــنم چـــې خپـــل ســـر خـــورې
عاقبـــت بـــه دې یـــو خنـــد لـــه ســـینې ووځـــي
تــهٔ چــې تــل پــه هــر یــو ښــاخ بانــدې ثمــر خــورې[11]

او بیا سرمایه دار چې د خپلو محلونو په شان او شوکت کښې اضافه کوي نو رحمان بابا ورته بیا خبردارے ورکوي او وائي.

دا پاخـــــهٔ پاخـــــهٔ ســـــرایونه محلونـــــه
خـــو بـــه وران شـــي عاقبـــت پـــه دا دنیـــا[12]

د رحمان بابا په شاعرانه افکارو کښې ځاے په ځاے د دولت او سرمائې د جمع کولو او سرمایه دارو د غېر انساني روئیو نه پردې پورته کړے شوے دي. هغهٔ په انفرادي توګه هم سرمایه دار ته د هغهٔ د ناوړه روئیو او غلطو منصبونو نقصانونه ورښائي او په مجموعي انساني حوالو هم د زور ظلم، د سرمایه دارانه نظام حکومت او استحصالي طبقو غندنه کوي. د دې بحث خلاصه د رحمان بابا د ځو شعرنو په شکل کښې وړاندې کوم او امید لرم چې د رحمان بابا د تعلیماتو په رڼا کښې به دا خبره ځرګنده شوې وي چې د دولت بې ضرورته جمع کول، سرمایه داري، جاګیرداري، د وسائلو په غلطه او ناجائزه طریقه قبضه کول او خپل ذاتي استعمال کښې راوستل، په زور او ظلم حکومت نیول او ملوکي نظام رائج کول، په مجموعي توګه انساني وقار او په معاشره کښې انساني ژوند او احترام ته ځومره لوے زیان رسېږي. داسې زیان چې د دنیا یو نظام یو دستور، یو مذهب او یو دین ئې هم جرئت نهٔ ورکوي بغېر د سرمایه دارانه نظام نه، ځکه ئې رحمان بابا هم د یو ویښ او باضمیره دانشور، مدبر او شاعر په حېث غندنه کوي. د هغهٔ ځو شعرونه د

[11] ایضاً ص، ۳۳۷
[12] ایضاً ص ۹۵

دې بحث د خلاصې په توګه ورکوم۔

کـۀ ئــې مــال د دنيــا ډېــر وي — هــېڅ دې نـــۀ کانـــدي پـــروا
دنيــــا بـــــده د هغــــو ده — چـــې ئـــې کســـب وي ريـــا
يــا ئـــې کســـب د ريـــا وي — يــا ئــې ټولــه کــړي پــه غــلا
يـا ئــې ټولــه کــړي پــه ظلــم — يــــا د خمــــرو پــــه ســــودا
يــا ئــې ورکــړي پــه شــرابو — يـــا ئـــې ورکـــړي پـــه زنـــا
پــه نــاحق خونونــه کانــدي — يـــا مالونـــه خـــوري د چـــا
عبــادت کــړه پــه خــان فــرض — د بادشـــــــاه د اُمـــــــراء
حـق باطـل کـړه باطـل حـق کـړه — پــــــه ســــــبب د رو ريــــــا
د يـــــوې ګېـــــډې د پـــــاره — هـــزار خـــونې کـــړه ېېـــديا[13]

......***......

[1] ايضاً ص ۱۰۱،۱۰۲

# د کرونا وائرس وبا او د پښتو موسيقي

نورالبصر امن

د کرونا په نوم چې کوم وائرس د چين په ښار اوهان کښې د ۲۰۱۹ء کال په اخر کښې پېدا شوي دي په لږ وخت کښې ئې د وبا شکل اختيار کړو او خپلې پنجې ئې په ټوله دنيا ورښخې کړے. ډېر انسانان ئې د دنيا د مخ نه ختم کړل او دا سلسله تر دې وخته پورې دوامداره ده. د افسوس او سوچ خبره دا ده چې د سائنس، ټېکنالوجي او د طب په دې جديد دور کښې هم سائنس دانان او د طب ماهرين د دې وائرس په قابو کولو کښې ناکامه دي. دا وبا په ډېره تيزۍ سره په خورېدو ده د دې د کنټرول په چل هم څوک نۀ پوهيږي. د ژوند داسې اړخ نۀ دې پاتې شوے چې د دې وبا اثر پرې نۀ وي شوے. د ژوند د نورو اړخونو تر څنګ د موسيقۍ په فن هم ډېر زيات اثر شوے دے.

موسيقۍ ته په فنونِ لطيفه کښې يو اهم مقام حاصل دے.مذهب موسيقۍ ته په کوم نظر ګوري؟ دا يو ځانله بحث دے .د لته د کرونا وائرس په نتيجه کښې راپېښ صورتِ حال په تناظر کښې ذکر کول غواړم. پښتانۀ ډېر باذوقه دي او چې ذوق لري نو موسيقي به هم خوښوي خو د بده مرغه پښتنۀ ټولنه دومره کنفيوز کړې شوې ده چې د خلقو نه ئې د ژوند لارې ګودرې خطا کړي دي. په يو وخت کښې پښتنو د موسيقۍ په باره کښې دا سوچ لرو کوم چې په دې متل کښې واضح دے " غم په ژړا او ښادي په ډنګ ډونګ درنيږي" خو د کنفيوژن نه پس ئې رحمت شاه سائل داسې تصوير پېش کړے.

سائله ښار د پښتنو مې په دې او پېژندو

په مړي وير نۀ وو ،ډولۍ پسې سندرې نۀ وې 1

په دې شعر په يوه مختصره مگر جامع تبصره کښې د طب ډاکټر همدرد يوسفزي ليکلي دي۔۔

"کهتارسس .انسانان د يو شمير ذهني ناروغيو
نه ساتي د سائل صاحب سائنسي شعر دے .د
جديد نفسياتو نظريه هم دغه ده" 2

د ډاکټر همدرد يوسفزي هم په دې موضوع يو لاجکل شعر دے

چرته چې ساز نه وي ، سندره نه وي
هلته کښې هيڅ د ژوند خبره نه وي 3

په نړيواله کچه چې څنګه نورو هنرونو ته زيان رسېدلے دے دغه شان موسيقي هم د زيان سره مخ ده .خو سندرغاړي بيا هم په مختلفو ذريعو خپلې سندرې اورېدونکو ته رسوي۔

"د نړۍ مشهورو سندرغاړو د کورونا وبا له وجې
په کورونو کې بند پاتي خلکو لپاره پر انټرنېټ
سندرې ويلې دي. په کنسرټ کې د نړۍ طبي
کارکونکو ته د عقيدت پيرزونې وړاندې شوې دي.
د دې کنسرټ تابيا نوميالۍ سندرغاړې ليډي
ګاګا کړې وو چې د ګلوبل سيټيزن او د صحت
نړيوالې ادارې همکاري هم ورسره وه" 4

په دې وبا کښې خلق دومره د يرې،ترحې او ذهني فشار .اعصابي تناؤ، سره مخ وو چې ډېر خلق د نفسياتي بيمارو ښکار شوي دي۔د وبا نه نېغ په نېغه متاثره کيدونکي انسانان په خپل ځائے يو الميه ده خو د دې نه زياته الميه د دې بيمارۍ يريدونکے.بوړنونکے او وحشتي صورتحال دے۔

یاسیر علي شاه یاسیر د "کرونا او وحشت" په موضوع په
یو پوسټ کښې لیکي۔

"د کرونا دې وحشت ناک ماحول هر انسان ته د عجیبه واهمو
سره مل کړو د وړې بیمارۍ نه تصوّر کښې بلا جوړه شي اؤ
دغه بلا په انسان خوب خوراک حرام کړي
ډپریشن په نن دور کښې په پوره کمال دے
د انسان پوزه چې د جانان د غاړې لونګ به ئې حس کولو نن په
پوزو کښې د کافور اؤ سینټایزرو بویونه دي
نن مئین د جانان پۀ پوزه کښې پیزوان نتکۍ۔ د کومې واچوي
چې لوړې پوزې د ماسکونو شاته اوترې پټې شوې
لړزیدلو پاریدلو نامعلومو ویرو د انسان مرۍ داسې ګیپ
اونیوه چې والۍ والۍ جانان ژړونکے منظر شو
د هر توخي سره دنګ انسان یو دنګ جراثیم ښکاره شي
پۀ انساني تاریخ کښې چې نړۍ کلے شو نو د کلي هره کوڅه له
یو بله دومره لرې شوه چې د مل اواز تر انګۍ نه رسي
هر انسان محدود شو دومره محدود شو چې د نازولو د مرګ
خبر تر غوږو شي نو د جنازي د کټ بارو پۀ فیسبک اوږې
درنې کړې۔ د جانان پۀ کتو به چې کومه ساه لنډه لنډه شوه نو
نن پۀ کټ پراته وجودونه هېڅ بې هېڅه بې دمه اؤ ساه ساه دي
کومه تصور به چې د بجلۍ پۀ پړق کښې د حسینو د مرمرینو
وجودونو طواف وکړو نو نن تصور لکه د تندر د زړه باغونه
راغونه ترمې ترمې کړي اؤ جودونو ساکت کړي
نن ماحول صرف د وجودونو اؤ روحونو مرګ نه دے بلکه یو

کامل تهذیب پهٔ بدلیدونکي شکل کښې وینو اؤ داسې پهٔ
حیرت ورته ګورو لکه د یو مور نه چې ماشوم ورک وي اؤ
اوترې منډې وهي۔ 5

په داسې صورتِ حال کښې خلقو د یرې نه موسیقي هم نهٔ شوه اوربدے خو بیا هم په څهٔ نه څهٔ شکل کښې خلقو د دغې فشار د کمولو د پاره د موسیقۍ لاړ هم خپله کړې ده۔ چې څهٔ مثالونه ئې داسې دي۔ د مثال ریډیو خبریال ځلان یوسفزے په خپل یو رپورټ کښې لیکي۔

د صوابۍ ځینو ځوانانو د کورونا وائرس مخنیوي
لپاره د تولبند پر مهال له رواني (نفسیاتي) فشاره د
ځان ساتلو لاړ موندلې. دوی د غرونو لمنو ته ځي
او له موسیقۍ خوند اخلي۔ 6

د ادب او موسیقۍ تعلق د نوک او وړۍ دے ،مثال ئې د روح او بدن دے۔ کوم کلام چې د موسیقۍ سره زمزمه شي د هغې زور او اثر دوچند شي۔په دې حالاتو کښې دوه قسمه کلامونه زمزمه شوي دي یو هغه کلامونه چې د مخکښې نه لیکلي شوي وو او بل هغه چې په دې موقعه لیکلي شوي او په هغې کښې په مختلفو حوالو سره د کرونا تذکره شوې وي۔ لکه نغمې چې دا کلام زمزمه کړے دے۔

یاره په کور پاتې شه
کهٔ دې روغتیا پکار وي
ژوند سره نور پاتې شه
په کور ناستے غوره کړه
ما سره ژمنه وکړه

اخه د خان او کورنۍ سره ښېګړه اوکړه

:اسې بې ځبنته لکه د مور پاتې شه

باره په کور پاتی شه

: کرونا ناروغي د مرګ ملګرے دے

: ارمانونو قاتل لکه لوګرے دے

: دې تولنې په غم ګله غم خور پاتی شه

باره په کور پاتی شه 7

په سوشل میډیا باندې د وزیرستان د سیمې یو مریض د اتنړ ویډیو خوره شوې وه. او لیکلي ئې وو چې د دهٔ د کرونا ټسټ نېګټیو صفا راغلے دے او د هسپتال نه په اتنړ رخصت شوے دے.

دغه شان د پېښمني د پاره د خلقو د پاسولو د پاره
چې کوم ډهول غړیړي هغې ته هم اکثر نانبایانو اتنې
کړي دي دا ځکه چې د موسیقۍ او ښادۍ ټول
پروګرامونه بند دي او خلق اتنړ ته ډېر لېواله دے 8

د وائس آف امریکه ډیوه ریډیو په یوه ویډیو کښې
هنر مندانو د موسیقۍ سره په کرونا جوړې شوې
نوې ټپې زمزمه کړې دي.

د کرونا مرضه ورک شې

په ما دې بند کړل د سورکو شونډو سرونه 9

د شمال ټي وي له خوا یوه ویډیو په فیس بک شریکه شوې ده چې یو مسافر بخت شېر خان پکښې ډېر په سوز کښې دا کلام په ترنم کښې

وټبلے دے چې د خوند او غم ګډ وډ احساس شيندي
کمره کښې ناست يمه دننه
او چې روتېږ خوږم د پرونه
بهر وتو باندې په مونږه جرمانه ده
موږې اخره زمانه ده؟
اے د اوو بچو نه چې پابند شو
دلته کمره کښې ځانله تنګ شو
بهر وتې نۀ شو بهر راته شورته ده
موږې اخره زمانه ده
کفيل مې اوکړو دا اعلان
بهر ته په تلو کښې دې تاوان
کۀ بهر لاړې بيا دې خپله خساره ده
موږې اخره زمانه ده
دلته راغلے دے وائرس
خلاص به ترې نۀ شي هر يو کس
خدايه زمونږ نه ئې کړے واپس
کۀ واپس نۀ شي نو بيا غټه مسئله ده
سوږې اخره زمانه ده
زۀ بخت شېر خان د اخون کلي
ما خو وې داسې دې ليکلي

بیا به رانځ شم د سعودي نه مې توبه ده

موري اخره زمانه ده 10

د پښتو مشهور سندرغاړي کرن خان د لاندې معلوماتو مطابق د وبا سندره زمزمه کړې ده.

" سندره / "وبا ده" . په منته / د خلمي فاونډېشن او جاوید اپریدي . غږ / کرن خان . شاعري / محمد ګل منصور"

وبا ده ګېره کړې ئې نړۍ ده ربه خېر

ولاړه د ژوندون پوره بیړۍ ده ربه خېر

د خپل اولس احساس کوي بیخي کار د خلمو دے

راپورته چې کړي خان سره خلمي کار د خلمو دے

تپوس چې د غریبو څوک کوي کار د زلمو دے

پېل کړې ئې د ښېګړې لړۍ ده ربه خېر

ولاړه د ژوندون...

وبا ده...

احتیاط خوله پټول او لاس وینځل د دې علاج دے

او بوتي کرل کور او سیدل ښکلے احتجاج دے

او خیال کول چې څوک بې وسه څۀ شي ته مختاج دے

زېلې ئې هر ښار هره مانۍ ده ربه خېر

ولاړه د ژوندون. . .

وبا ده. . .

چې هر ګناه کوو ترې نه توبې کوو توبه

په د سې حال کښې هم مونږ ذخیرې کوو توبه

منصوره د ګناه په سر مزې کوو توبه

کچه کوته، باران دے او جړی ده ربه خېر

ولاړه د ژوندون. . . .

وبا ده. . . 11

محکمه ثقافت خیبر پښتونخوا هم خپله ذمه واري پوره کړے ده او په دې سختو حالاتو کښې ئې د صحت محکمې کارکونکو ته د سندرې په شکل کښې داد، ډاډ او سلام پېش کړے دے

"سندره / ډاکټرانو ته سلام - اوازونه / پښتانهٔ هنرمندان شاعري / لائق زاده لائق۔ پېشکوونکے / محکمه ثقافت خیبر پښتونخوا"

شې څومره ډاکټران دي

نرسانې کهٔ نرسان دي

په دغه ناروغۍ کښې چې خدمت کوي د قام

دې واړو ته سلام

لري د هر چا زړهٔ کښې محبت او احترام

دې واړو ته سلام

سلام ډاکټرانو ته سلام

د خان فکر ئې نشته

بې شکه سربازان دي
د مرګ سره کړي لوبې سپيځلي خادمان دي
چې شپه او ورځ لګيا دي تک نهٔ کوي آرام
دې وارو ته سلام
سلام ډاکټرانو ته سلام
چې ختمه مايوسي ئې په خپلو حوصلو کړه
پېشه د ډاکټرۍ ئې پېشه د فرشتو کړه
همت به د نرسانو يادولي شي مدام
دې وارو ته سلام
سلام ډاکټرانو ته سلام
خدمت د خپلې خاورې بې شکه عبادت دے
لائقه بس په دې کښې عزت دے هم عظمت دے
کرونا ختمول زمونږ منزل هم مرام
دې وارو ته سلام
سلام ډاکټرانو ته سلام 12

د فرزند علي آفېشل پاڼې نه يوه ويډيو خوره شوې ده چې عرفان کمال دا کلام په خپل غږ کښې زمزمه کړے دے

يو داسې وبا راغله دنيا ئې ليونۍ کړه
انسان ئې وار خطا کړو هره خوا ئې ليونۍ کړه 13

د ګوهر جان استاد په آواز د ستار د خوندور ساز سره د اکبر هوتي دا غزل هم زمزمه شوے دے

ماته په سترګو کښې سلام کوه لاس مهٔ راکوه
زما په زړهٔ کښې احترام کوه لاس مهٔ راکوه 14

د ممتاز اورکزي دا غزل استاد ګل رحمٰن وروت په ښکلي ساز او آواز کښې زمزمه کړے دے

يـــوازې دا نه،چې ياران به آئينې بدلوي
دويي دې خبر وي، خامخا به حافظې بدلوي

مـخلوقه!! مه اوځئ بهر،دا ننداره مو وژني
دنـــيا بربنډ غســل کوي نوې جامې بدلوي

واقـــعه دا ده، واقعې به حادثې بدلوي
حـــــادثه دا ده،حـادثې به واقعې بدلوي

ښه شو، ملګرو.زمونږ نسل دا هم اوليدل چې
طبيـــعت دومره زوره ور دے عقيدې بدلوي

امر دے،اوس به کرامت له خپل مقامه لويږي
امــــر دے.اوس به پښتانه هم رويې بدلوي

مــــــصنفين به کتابونو ته ږدي نوي نامې
ســـــريزه باز به هم اسلوب د سريزې بدلوي

ساقي به هم هغه زاړه شراب نور نه ستايي بس!
مـــــمتاز به هم مسترد شوې پيمانې بدلوي 15

دا د ممتاز اورکزي د کرونائي په حالاتو بل غزل دے چې د استاد خالق عزيز کندهاري په خپل ځانګړي ستائيل او خوږ ژغ کښې زمزمه کړے دے.

کـــــعبه خالي ،مندر خالي،او کليسا خالي ده
خــــــدايه دا څه دي؟هره لپه له دعا خالي ده

څۀ بې حسې ده چې له سوزه هر ارمان خالي دے
څــــــه بې وســـې ده له شدته تمنا خالي ده

له سره شور .او زړه نه زور په کډه چرته لاړل؟
دا څــــه قحطي شوه؟خزانه د هر باچا خالي ده

دا کــوم مقام دے ؟ چې سحر لیونے شپې پسې شو
دا کــوم مقام دے؟ د شــپې دشته له سبا خالي ده
.

انتهــــــا اوشوه.د بابیللي سماعت په کور کښې
شــــــــوردے چې هره انتها له انتها خالي ده

ملنګه!! اوښـــــایه جولی، دا په ریښتیا خالي . ده؟
هــم تـــــا وییل چې دنیا رنګه ده .دنیا خالي ده

د منــصور چغه .رقص د لال شهباز،ممتازه خالي
نـــــور لټون غواړي،خاموشي مې د بدها خالي ده 16

خوږ ژبي سندر غاړي هارون باچا د خوږ ژبي شاعر اکبر سیال د نظم ' زما لالیه په خپل کور کینه' څو شعرونه په خپل جادوګر آواز زمزمه کړي دي او ورسره ئې دا پېغام هم ورکړے دے .

' ملګرو مینه والو دا د اکبر سیال شعر وۀ ما زمزمه کړو په دې هیله چې خوښ شوي به مو وي. د دې کار مې هدف دا وۀ چې تاسو له یو پېغام درکړم زما هغه ملګري او مینه وال چې دا وخت زما غږ اووري ډېره زیاه هېله کووم تاسو ته پته ده چې د کرونا وائرس دا وبا دا بلا راغلې ده د دې نه د ځان او خلقو ژغورلې د پاره دا ضروري ده چې مونږ هغه اختیاطي تدابیر په پام کښې اونیسو عملي وربانديې وکړو د. کومو وړاندیزونه چې زمونږ حکومتونه مونږ ته کړي .د

صحت نړيوالې ادارې کړي ډاکټرانو کړي،دا زما
خواست دے ستاسو نه زما هم دغه هيله ده چې په
کورونو کښې پاتې شئ د خپل ځان او نورو خيال
اوساتئ د ژوند سره مينه وکړئ دا ځکه چې ژوند
ډير ښکلے دے،ډيره مننه کور مو ودان: 17

د کرونا د وجې نه د اختر دپاره خصوصي سندرې او البمونه هم دا ځل متاثره شو او هغه شان موسيقي اونۀ شوه څنګه چې به مخکښې کېدل، خو په پېښور کښې د ډيوه ريډيو خبريال فاروق فراق د ډيوه د مينه والو د پاره د کرن خان،ګوهرجان،شوکت سواتي او ارشاد سره په دې حواله يو پروګرام کړے .

"سږکال داختر په موقعه نه خو نوي فلمونه ريليز
شوي اؤ نه دموسيقۍ هغسې البمونه مخې ته راغلي
لکه نور کله چې به راتلل ،خو د وي او اى ډيوه
خبريال فاروق فراق تاسو دپاره په دې وړوکي اختر
يو ښکلى سندريز بنډار راجوړ کړى ،خوند ترې
واخلئ: 18

هم دغه شان د ډيوې په امريکه کښې يو بل خبريال
فضل الله هم د ټنګ ټکور يو پروګرام د وړوکي اختر
په موقع پيش کړے دے . امان اپريدے،ميا وحيد
الله،خالد خټک،فخرِعالم او نور پښتانه راغونډ
شوي دي او شوقيا د ټنګ ټکور پروګرام را جوړ
کړے دے. 19

ه دې پروګرام کښې د کرونا ،لاک ډاؤن،د موسیقۍ او موسیقارانو د
ښتونزو سره سره د اختر امبارکۍ او سندرې هم اووئیلې شوې۔
غه سلسله لا روانه ده او امکان دې چې "کرونا البمې" هم ریلیز شي۔
ښکښې دې ټول انسانیت ته خبر پېښ شي خو تر دې دمه چې کوم
ورتحال دے د هغې په نتیجه کښې د موسیقۍ سره تړلي هنر مندان د
ېر اذیت سره مخ دي.په مذهبي ټولنه کښې داسې قسمه ځلقو او هلو
لمو ته خلق په سم نظر نۀ ګوري خو په دې کښې شک نشته چې د دې
لقو د ژوند په پرمختګ او د انسانانو په ذهني طبع تفریح کښې ډېر
یار ګالي ،پکار ده چې په سخت وخت کښې د نور انسانانو په شان د
وي سره هم د انسانیت سلوک اوشي چې په دغه شان سخت حالاتو کښې
انسانانو ذهني،اعصابي او نفسیاتي فشار په کمولو کښې دوي هم
پل کردار اولوبوي۔

# حواله جات

1https://web.facebook.com/permalink.php?story_fbid=1620273964787662&id=100004152228785

2https://web.facebook.com/permalink.php?story_fbid=3059280060796815&id=100001445546956

3https://web.facebook.com/profile.php?id=100001445546956& 19-5-2020

4https://web.facebook.com/mashaalradio/videos/902536653542754/ 30-4-2020

5 https://web.facebook.com/permalink.php?story_fbid=2696215497282425&id=100006820037567 25-5-2020

6https://web.facebook.com/mashaalradio/videos/545244886191136/ 30-4-2020

7 https://web.facebook.com/shaparee/videos/856951684731533/ 29-4-2020

8 https://web.facebook.com/hafizullah.sherani/posts/1555525064640350 30-4-2020

9https://web.facebook.com/drsher.zaman.1/posts/923461391441385 30-4-2020

10https://web.facebook.com/100904854898945/videos/203898020943650/ 4-5-2020

11 https://web.facebook.com/hamayun.ghazal/posts/769763750523126 11-5-2020

12 https://web.facebook.com/hamayun.ghazal/posts/758196701679831 11-5-2020

13 https://web.facebook.com/FarzandAliofficial222/videos/672124523573298/ 11-5-2020

14https://web.facebook.com/writerakbar/posts/3265987466768308

15 https://web.facebook.com/mumtazrehman.orakzai/posts/1402287049944318 6-4-2020

16https://web.facebook.com/mumtazrehman.orakzai/posts/1391328457706844 19-5-2020

17 https://web.facebook.com/haroonbachaofficial/posts/3631330323605947 24-5-2020

18 https://web.facebook.com/voadeewa/videos/238982320859419/ 23-5-2020

19https://web.facebook.com/voadeewa/videos/247752099832600/ 24-5-2020

......***......

# چې دف غرېږي

شېر ولي خان اورکزے،

د ښاغلي نور قاسم قاسم په غزل کښې دف غرېږي، او یا د هغه غزل لکه د دف غرېږي یو داسې دف چې په ګڼ شمیر استعارتي او علامتي اهنګونه لري، هسې خو د دف غږ خپل اهنګ د پښتنو په روایاتو، تهذیب او تمدن کښې شتون لري،

لکه دف کله په واده ښادی کښې د پېغلې په لاس کښې چمبه شي، کله د څه خاص خبر ور کولو لپاره د نايي په غاړه کښې ډول شي ، کله د پښتنو په جرګو کښې د زلمو د اتڼ سبب او بیا کله حجره کښې د حجرې د مجلس هغه دبلۀ شي چې مجلسي په‌کښې د ګودر او د چنارونو تپې اړوي را اړوي،

په ذکرشوي ټولو روایاتو کښې دوه قدرونه مشترکه دي،یو دا چې دف د ژوند علامت دے او بل ده ژوند په لورې د توجو راړولو انګازه ده ،خو د دې نه علاوه هم ښاغلي نور قاسم د خپل فن په زور د غزل په نازک وجود کښې د دف څو نور غږونه، اهنګونه ،د استعارو او کنایو په ژبه کښې زمونږ مخې ته ږدي،هغه هم په یو نوي رنګ، او په ځانګړي اسلوب ، لکه چې وايي،

قاسمه ،هلته مې دې خدا ے په توره تبه مرکړي،
چې دف غرېږي او نڅا لۀ ډاره نۀ کومه،

د بره ذکر شوي شعر د ډار او خوف باوجود د قاسم صیب په غزل کښې د امید بځري هم ځلا کوي،اصل کښې د امید لمن پرېښودل هم نه دي پکار، ځکه چې امید د ژوندي انسان د پاره انتهاي شیرین او مهم تکې

دے دومره شیرین او مهم دے که چرته مونږ د ژوند نۀ د امید ټکې لرې کړو نو زمونږ دا متحرک وجود به مفلوج شي،یۀ چا رښتیا او رسا ویلي دي چې دنیا پۀ امید ر وانه ده، که مونږ پۀ چاپیرچل نظر وکړو نو پۀ کټ کښې پروت رنځور د روغ صحت پۀ امید ژوند کوي، یۀ غریب سړے د ښې ورځې پۀ ارمان خپل همت کوي پښې او لاس وهي،پۀ انفرادي توګه داسې نور مثالونه هم ډیر دي، هم دغه شان امیدونه د قومونو او هیوادونو هم وي،د چا دا امید وي چې مونږ دې مدام سپر پاور وو، څوک داهځې کوي چې مونږ دې سپر پاور جوړ شو،او څه قامونه پۀ دې کوشش کښې دي چې مونږ ته زمونږ بنیادي او انساني حقونه ترلاسه شي، د یۀ قام پۀ حثیت د پښتون اولس امیدونه د نظر لرونکو پۀ نظر کښې دي، یۀ طرف ته ظلم دے، جبر دے،ظلمت دے، استعدادي سوچ دے،مکر دے، فریب دے. بل طرف ته د پښتون اولس پۀ ګڼ شمېر کښې ستونزې دي، خو بیا هم قاسم صیب د امید دف غږوي ، د کوم امید او د څه امید؟

وړاندې د دې ابهام د ختمیدو نه چې قاسم صیب د کوم امید دف غږوي، دا خبرۀ ضروري ګڼم د یو لیکوال، دلته د لیکوال مطلب سنجیده او نظر لرونکې لیکوال دے،

امید نۀ خو د عنکبوت کور دے او نۀ د ایرو څلې، د خبرې مطلب مې دا دي چې د یۀ لیکوال امیدونه پۀ حقیقت اډانه وي، د هغه نظر هغه څه هم ګوري چې عام خلق ئې تصور هم نه شي کولې. دا د شپږم حس هغه محسوسات دي چې پۀ نړۍ کښې پرون د یۀ څه تصور هم نه ؤ ممکن او نن ئې مونږ مشاهده هم کولې شوو،

اوس تاسو پۀ خپل چاپیرچل هم نظر وکړې د حالاتو اور او زور هم وګورې او بیا د قاسم صیب دا امید هم!

اکادمي ادبیات پاکستان

ذرې ذرې دې بیـــا را ټولـــوم نـــوحې نـــهٔ وایـــم،
ذرې ذرې چـــې وړے ئـــې هـــوا زرزري خیالـــه،

اوس خـو د شـپې مـرگ یقینـي دے چـې سـخر روان دے،
دادې د نمـر څـرک د یـؤ لاس پـهٔ فاصـله کښـې ویـنم،

. قاسم صیب د دې امید شاته د هغه پښتون جلال لکه د سمانې د غره وچت سر ولاړ دے ، باوجود ددې چې د قاسم صیب شخصیت او تخیل د :ې خبرې گواهي ورکوي چې هغه د عدم تشدد پیروکار دے،

وس دا هم کیدے شي چې د پښتون جلال پهٔ حق لهٔ د یؤ چا پهٔ ذهن کښې د تشدد کوم عنصر منعکس وي او دا دواړه خبرې ورته تضاد ښکاري،نو د هغو لپاره دا وضاحت پوره او ضروري گڼم ، کله چې فیرنگي باچاخان جیل کښې بند کړو ، نو بابا د فیرنگي د ظلم او جبر پهٔ ضد پهٔ جیل کښې دننه د فیرنگي سره د هر رنگ تعاون نهٔ بائیکاټ وکړو، او د بائیکاټ باوجود ئې د فیرنگي جوړ شوې قانون هم پهٔ لاس کښې نه اخیستل، د بابا دې روایې او عمل ته مونږ پهٔ یؤ وخت کښې عدم تشدد او پښتون جلال ویلې شو،د قاسم صیب پهٔ غزل کښې هم ددغه شان جلال دف غړیړې پهٔ زور او شور سره غړیږي،خپل اولس ته د عدم تشدد لار ښایي پهٔ دې ضمانت سره چې مرام ته رسیدل پهٔکښې یقیني دي، او که جلال ئې وگورې نو د وخت هر طاقت ته سترگې خو پریږده چې لیمه هم نه ټیټوي،یقینا چې د هغه د پښتون جلال دا رنگ د کتو دے،

یـؤ سـر ؤ پـهٔ لوړتیـا کښـې تـر اسـمانه رسـیدلې،
پـهٔ سـر کښـې د نیـزې ؤ چاتـه خـم نـهٔ ؤ جانانـه،

پـهٔ سـوزنې ترلـې مـور پـهٔ رومبـی ورځ وم،
مـړه څـه زنځیـر زنځیـر کـوې سـړیهٔ،

او یا د هغه دا شعر،

ستا سینه کښې بلهـا شـور ؤ طلاطـم ؤ،
سـمندره !دا قـرار دې بـل څـه وایـي،

په دې اخري شعر که مونږ وګورو نو په اوله مصرع کښې د پښتون تاریخ جلال په موجونو دےاوپه دویمه مصرع کښې سره د ټول احترام ا عظمت. د یؤ مبهم شان پیغور په شکل کښې د نن پښتون نه د پښتون قا د نشاة ثانیه غوښتنه کوي،

د هغه د جلال د یؤ بل رنګ لیدو نه وړاندې د قرآن پاک په سورة البقر کښې د الله تعالی دا فرمان واورې،

ترجمه،

په خصوصي توګه د مدد مستحق هغه خلق دي چا چې د الله تعالی په لا کښې ځانونه داسې مقید کړي دي چې د خپل ذاتي کسب او معاش د پار په زمکه کښې مزلې نشي کولاي،چونکې دا دومره پاک لمن خلق دي چو چاته سوال هم نه کوي ، په همدې بنیاد نا واقف خلق هغوي شتمـ حسابوي تاسو دا خلق د مخونو د علامتونو نه پیژندی شې، هغوي پ خلقو پورې د سوال د پاره نښلي نۀ او تاسو چې څه هم خرچ کوې الد تعالی دهغۀ هر څه نه ښه خبر دے

داسې ښکاري لکه چې په دې آیات مبارک کښې د پښتون د جلال خبره کیږ . ګني د نړۍ نور قامونه د ګیډې د دوزخ د ډکیدو د پاره څه څه نه کوي، خو پښتون قام اکثریت داسې نۀ دے دا صرف زما دعوه نۀ دے بلکې زمونږ ټولو د مشاهدې خبره ده او یؤ دلیل ټرې د قاسم صیب دا شعر دے،

نهـر دے خـو پـۀ خولـۀ ئـې نـه ګیلـه نـۀ شـکایت،
مـا داسـې هـم پـۀ دې چـم کښـې لیـدلے دے یـؤ کـس،

سم صیب پهٔ خپل جلال د ویاړ سره د خپلې انا نفي هم کوي ، خو د دوو
ضادو خیالونو باوجود هم د هغه انداز د کتو دے، وجه ئي ظاهره ده
ې په فن باندې عبور، د فکر پختګي، د لفظونو پهٔ معنې او تقدس
ندې پو هیدل، پهٔ خیال باندې مضبوط ګرفت دے،
ږنو د هغه د پښتون جلال رنګ ولیدل اوس ګورو چې هغه دخپلې انا
ي څنګه کوي او ولې ئې کوي؟
ې سوال ځواب د هغه پهٔ دې شعر کښې دے،

زه چې د ځان نهٔ لرې لاړم دومره لرې لاړم،
چې بیا د ،زهٔ، د فکر بوي راته نیزدې رانغے،

اولنې نظر دا دوه متضاد خیالونه ښکاري خو پهٔ حقیقت کښې داسې
کل نه ده، لکه څنګه چې مونږ بره د باچاخان بابا د کردار مثال وړاندې
ړو، بلکل هم هغه شان د هر فعل او قول خپل خپل وخت او ځاے وي،
سم صیب چې په دې شعر کښې د ځان نهٔ لرې تلې دے نو د هغه ارزښت
ر هم سیوا شوې دے ځکه چې اوس هغه د یوې مرحلې نه راتیر دے
س د هغه پهٔ تخیل کښې یو کاز دے هغه اوس یو نسب العین لري،
س هغه باخبر دے ځکه خو وائي چې،

قاسمه زړه دې چې کنډر وي څومره،
هومره ارزښت ئې د انځور زیاتیږي،

ه د خپل زړه کنډر پهٔ مثبت انداز کښې اخلي،وجه ئې ښکاره ده چې
ل وجود نهٔ دے، ځکه چې انځور د خپل اولس د پاره جوړه وي ، پهٔ دې
اس مونږ بیا دا هم ویلې شو چې هغه به د خپل اولس سره مینه هم
ې،مینه که څه هم د کوم دلیل او اظهار محتاجه نهٔ وي مئینان سره پهٔ
ږګو سترګو کښې پوهیږي، خو پهٔ دې ماده پرست دور کښې پهٔ

اخلاص او په حقیقتونو هم شکونه کیږي،خو د قاسم صیب د خپل اولس سره د مینې ثبوت اول خو په خپله دا کتاب دے او ددې کتاب نه علاوه دوه نور کتابونه او په ګڼ شمېر ادبي خدمات دي،په ذکر شوي دلیل دا سوال هم پورته کیدے شي چې داسې خو زمونږ هر لیکوال کوي چې هم کتابونه چاپ کوي او هم ادبي خدمات لري، ځواب ئې دادې چې دا ټول د خپل اولس سره مینه لري د خپل اولس دردونه محسوسه وي، په کروړونو خلقو کښې هم دغه په شمار خلق دي چې دا ژبه ژوندے ساتي ، او دا بیله خبره ده چې په هم دې لیکوالانو کښې داسې هم شته چې ځوک پښتو وخوړل او چا پښتو وخوړله،خو زه دا خبره د قاسم صیب سره د ناستې او ولاړې په بنیاد کوم چې نوموړې د اولنو په صف کښې ولاړ دے.

خو د قاسم صیب د خبرو اهمیت ځکه زیات دے چې هغه یؤ عام لیکوال نۀ دے، د کسکریزم،دکاپي پیسټ، د روند تقلید ،د ډلۀ بازۍ، د بازاري، د لاعلمۍ،او په تیره تیره د مغربي بهیر په دې دوران کښې خپل تشخص برقرار ساتل، په خپل فن باندې خپل رنګ کشید کول ،خپل اسلوب پیدا کول، او د خپلو روایاتو خبره کول یقینا چې ډیر ګران کار دے زۀ بغیر د کوم ججک او بغیر د مبالغې نۀ دا دعوه کوم چې ښاغلي قاسم صیب دا ګران کار تر سره کړې دے،او هغه په خپل رنګ او اهنګ کښې دا خبره ثابته کړې ده چې هغه د خپل اولس سره مینه لري،بې ریا او بې عرضه مینه، د هغه د مینې په ثبوت باندې د هغه دا څو شعرونه د برهان درجه لري،

چې پرې د قام د ناروغیو دارو نۀ شم کوے،
وایم چې اور د شاعرۍ په دې هنر پورې کړم،

په خپل زړه کښې مې سور اور بل ؤ قاسمه،
خو په زړونو پریوتمه لکه واوره،

و یا د هغه دا شعر چې د خپل اولس سره د مینې انتها ده،

خاموشـــي د ګلـــدرو ســـړے خفـــه کـــړي،

د بچیـــو خـــر مخونـــه ســـړے مـــړ کـــړي،

خپل اولس سره مینه د هغه یؤ اړ خیزه او د اظهار تر حده نۀ ده ... اتې،بلکې هغۀ د خپل اولس په حال باندې ساندې هم ویلې دي، خو په ...ې ساندو کښې هغه ټپې نشته چې د مایوسۍ زهر پۀکښې شامل وي ، و تر څه حده د بې وسۍ اعتراف پۀکښې شتون لري خو چونکې دا اړخ ...ې تر ډېره حده د حقیقت غمازي کوي ، البته زمونږ د وینا مقصد دلته دا ...ې چې زمونږ لیکوال د خپل اولس درد څومره محسوس کړې او خپل ګنلې دے او یا هغه د احساس پۀ کوم مقام ولاړ دے او د کوم کرب او اذیت نۀ راتیریږي؟او د هغۀ حالاتو د آه نۀ ئې بیا کوم او څنګه تصویرونه جوړ کړي دي ؟

دلته د هغه یؤ شعر راوړم، امید دے د بره سوالونو ځواب به پۀ کښې پیدا شي،

ســتا کومــه کومــه بــد بختــي او بــې خــودي وژاړم،

د پښــتون پــرې لمنــې ، پــرې ګرېوانــه، مــړ دې کړمــه،

پۀ دې شعر کښې یاد شاعر د پښتون نن او پرون تصویر کړې دے، دا شعر لږ وضاحت غواړي،

بدبختي، یعنې پرې لمن، بې خودي، یعنې پرې ګریوان،لمن چې د پښتانو ثقافتي شناخت دے ،بیا د لمنې پریکیدل ګنې معنې ورکوي، چې تر ډېره حده ئې د بد بختۍ دا ټکې احاطه کوي،د بې خودۍ تضاد هوش، خود یعنې خودي،خودي چې د پښتون پۀ سریشت کښې شامله ده، د خودۍ ربط د ګریوان سره ډېر مناسب او موزون دے ځکه چې

زمونږ په چاپیرچل کښې سیرې ګریوان د لیونتوب علامت دے،خو په شعر کښې بلاعت اعلی درجه دادې چې ګریوان سیرې نۀ دے بلکې پرې دے نو د پرې دا تکې خیال ډیر با معنې او وسیع کوي ، ځکه چې پرې ګریوان کښې بۀ لازمه خبره ده چې د بل چا لاس شامل وي، ، بس د هم دې لاس پۀ ضد د پښتون قام خاموشي هغه د کرب دې مقام ته راوستل چې بې اختیاره ئې د خولې نه دا چغه پورته شوۀ ، چې مړ دې کړم، ددې شعر د مختصر شان تشریح نۀ دلته زمونږ مقصد دادې او یا دا خبره پۀ ډاګه کوو چې د قاسم صیب پۀ یو یو شعر کښې زمونږ د نن او پرون کوم کوم داستانونه او حقیقتونه پراته دي،او یا د پۀ زړۀ کښې د هغه په روح کښې د خپل اولس د مینې درد او احساس پۀ کوم مقام دےد هغۀ د درد او د احساس د نور وضاحت د پاره د هغه دا دوه شعرونه پو ره ګنم،

ستا کـانړي زړه بانـدې ګلچینـه اسـمان هـم وژړل،
د ګلابـو نـو نـه څـوک دغسـې سـرونه وهـي؟

وطـن کښـې مـو یـۀ داسـې نامعلومـه خـوف ۆ خـور،
مابښـام نـه تـر مابښـامه دروازې نـۀ خلاصـیدې،

د قاسم صیب پۀ غزل کښې یوۀ بله موضوع دومره جامعه، مدلل ، او د فن پۀ پیمانه پوره ده ، چې منکر پرې اعتراض کولی نشي، هغۀ د دوران هغه حقیقتونه دي چې توله نړۍ ئې پۀ غټو غټو ګوري، اوري ، خو د بې حسۍ تر حده خاموشي ده، بغاوت او مزاحمت خو لرې خبره ده یۀ منظم او جامع احتجاج قدرې نشته، دا بې حسۍ او خاموشي مونږ د تیرو څو لسیزو نه ګورو ، مونږ موجوده خلق د دې بې حسۍ او خاموشۍ نۀ صرف شهیدان یوو بلکې په دې دواړو کښې پۀ مکمل توګه پۀ شعوري او یا غیر شعوري توګه شریک یوو ، مونږ پۀ خپلو سترګو ولیدل او لا ئې

ګورو چې د خپلو مفاداتو د پاره په نړۍ کښې اور چا بل کړې دے؟ د بارودو بزنس د چا روان دے ؟ څوک دي چې د نړۍ د ټولو نه زیاته وسله جرڅوي؟

او یا د خپلې way of life په خاطر او مفکوره د عرب او عجم تهذیبونه چا د پښو لاندې کړل؟ په دې ټیک ټاک کښې چې کومې پښتنې نن برېنډ سرونه ګډیږي دا د کوم تهذیب او تمدن عکاسي کوي؟ دا خو د ففت جنرېشن وار یو اړخ دے که دې بل طرف ته وګورې نو په افغانستان کښې څه څه وشول؟په عراق،فلسطین ، برمه ، او کشمیر کښې کوم ظلم او جبر ونۀ شو او یا نۀ کیږي؟دا ټول سوالونه مخې ته کیږده او صرف دا ځواب ئې تلاس کړه چې د دې هر څه تاوان چاته دے اوګټه ئې چاته رسیږي امید دے چې ځواب به درته میلاو شي،

او چې تر څو پورې په دې نکتو غور نوي شوې نو د ستم دپاسه دا ستم به جاري وي ، چې د قاتل ، بلکې زه به ورته اُجرتي قاتل اووایم په لمن د وینو یوۀ قطره هم چاته په نظر نه ورزي،بلکل پاویتر به وي لکه چې دے،تاسو وګورې چې د ظلم د پاسه ظلم دا چې مقتول هم زۀ یم، سرونه هم زمونږ مات شول، معیشت هم زمونږ تباه شول، ثقافونه هم زمونږ په اخري سلګو دي ،او ترهګر او شر پسند هم زۀ یم، او د افسوس د پاسه افسوس دا چې دا حقیقتونه او په دے حقیقتونو تشې خبرې کول هم د بادار نه هضمیږي، داسې خبرې کول نه صرف ګرانې دي بلکې د ځان او د بچیو د سرونو په داؤ لږول دي، خو یؤ با ضمیره لیکوال دا منافقت نشي کولې هغه خاموش نشي پاتي کیږي، او نۀ د هغه وجدان هغه ته د کوم مفاهمت اجازت ورکوي ، د وخت د هر بادار مخ ته آئینه نیول دې څوک د قاسم صیب نۀ ذده کړي چې هم پۀکښې جرأت شته او هم پۀکښې دلیل،

چې هره ورځ راله په سرو وینو سرونه وینځي،
کرکه به شپې نه د بلا له ډاره نه کومه!

ته نغمه د احترام د بشر وایه،
د بارودو کار او بار دې بل څه وایي،

نغرې وهي د مینې او سولې او د امن،
ته ګوره د سرونو مناره باندې ولاړ دے.

ددې دلیل نه روسته هم چې د وخت بادار ځان کوڼ او ګونګ کړې دے نو بیا د قاسم صیب په غزل کښې مزاحمتي دف هم په غړیدو شوې دے، په شعر کښې مزاحمتي رنګ د احتجاج نه یوه پوړۍ بره او د بغاوت نه ویه پوړۍ لاندې وي، زما په خیال دا خبره متافقه علیه ده چې که شاعر هرڅنګه وي خو حساس ضرور وي اوس سوال دا راولاړیږي چې یؤ شاعر د حساسیت باوجود په شعر کښې مزاحمتي رنګ څنګه ځایولې شي؟ددې سوال ځواب دادې چې کله حلات داسې جوړ شي، چې ظالم ته د خپل ظلم احساس نۀ کیږي. طاقتور د طاقت په نشه کښې بد مست هاتي شي. محافظ د کورونو دروازې په ماتولو کړي، رهبر د رهزن شکل اختیار کړي.او عام اولس د بې وسۍ تصویر جوړ شي،نو دلته بیا د شاعر هم هغۀ حسۀ یعنې احساس د هغه د وجدان دروازې ته ټک ورکړي او دخپل حساسیت په وجه بیا داسې مستانه نغرې پورته کړي لکه د قاسم صیب دا شعرونه.

زه د ننګ مبارزه کوم لګیا یم،
ته بیخي لۀ دې سنګره خبر نه ئې،

نوره مې د خوف چار دیولي ده نړیدلې،
اوس لیونے شوے یم بلا پسې راوځم،

ـره ذکر شوۀ عالمګير فکرونو نۀ علاوه د قاسم صيب پۀ زړۀ کښې يۀ
ـنګين هم غزونې کوي کله کله هغه دې خپل لونګين ته د مينې او د
ـمان دف هم غړوي خو د قاسم صيب د مينې او د رومان رنګ يقينا چې
ـيخلې دے، زمونږ خپل رنګ دے.زمونږ د رواياتو عکاس دے،د
ـت او د خيال د اذادۍ يا روښن خيالۍ پۀ بهانه او يا جواز نۀ خو
ـکښې فحاشي شته او نه بې شرمي. د فحاشۍ او د بې شرمۍ دا ټکي
ـ ځکه راوړل چې که مونږ وګورو نن زمونږ ادب، يعنې پښتون ادب،
ـې د رومان پۀ نوم خومره بې ډبه او بې ادبه شاعري کيږي،او خيال د
ادۍ پۀ نوم څه څه دي چې نۀ ئې وائي. دا خبره زۀ بغير د کوم ججک نه
ـم او پۀ سپين ميدان ئې کوم چې زمونږ د ليکوالانو پۀ صفونو کښې پۀ
ـ شمېر سره داسې ليکوال شتون لري چې ښه پۀ ښکاره ئې د پښتون
ـب نه جامې اوويستې ښه پۀ کولاؤ مټ لګيا دي خلک ګمراه کوي د
ـمان پۀ نوم فحاشي خوروي د خيال د اذادۍ پۀ نوم کچه ذهنونه
ـابوي، چې مونږ ټولو ته ئې مخ نيوې پکار دے . اوس دلته د يؤ چا پۀ
ـن کښې دا سوال هم راتلے شي چې پۀ شعر کښې د رومانيت د حدودو
ـين مونږ څنګه کولې شو او يا ئې پيمانه څه ده ؟پۀ خواب کښې درته د
ـسم صيب دا شعرونه ګدم چې هم پۀکښې رومانيت شته او هم د پښتانو
ـرواياتو پۀ دائره کښې دي.

د لـــونګين نـــه مـــې لـــوګے کـــړې څـــه ناڅاپـــه راغـــے.
نـــن هڅـــې ســـترګو کښـــې زمـــا لونـــګ لونـــګ نـــۀ کيـــدو.

تخيـــــــــل دے. تغــــــــزل دے. تخليقــــــــــاره.
دغـــــه ښـــــکلي تـــــه دې پـــــام دے شـــــاعري ده.

زما د آه پـه تـوده بـاد ئـې اننګـي مـړاوي شـي،
هغـه نـازک دومـره دے، دومـره نـازولے دے چې،

د قاسم صيب د مينې دا تصور يؤ دړديدلې رنګ هله اختيار کړي چې مونږ د هغه د مسافرۍ د ژوند تصوير تصور کړو، آه ددې اوده قام. بد قسمته ورته څکه نۀ وايم چې اوده دے څومره څوانان پۀ نورو هېوادونو کښې د هجران بلاګانو وخوړل، څوک چې د مسافرۍ د کرب نه تير وي هغو ته ددې درد احساس شته چې د مسافرۍ ژوند څومره ګران دے، او که د چا دا تجربه نه وي نو هغه دې دا منظر د قاسم صيب پۀ دې شعرونو کښې وګوري،

زه خـو تـپ د بېلتانـه د ريګـزار پـوخ کـړم،
بختـور دے چـې پـۀ کلـي دے پـۀ کـور دے،

سـتا د لاسـه سـمندر کښـې د درد ډوب يـم،
هجـره! نـۀ غلـط شـوم اوره شـپه مـې وژنـي،

د مضمون د طوالت باوجود د قاسم صيب يؤ شعر راوړل ضروري ګنم، خو د شعر نۀ وړاندې دا دعوه هم کوم چې د قاسم صيب دا يؤ شعر د شرابو د تشهير کونکيو د کتابونو نه هم پۀ معنوي توګه اوچت او ښکلې دے،

دلتـه هـر سـړے عـادي دے د شـرابو،
زه زم زم د خپلـې مينـې پـۀ چـا وڅښـم،

......***......

# حاجي صېب نواب خان نواب
# شخصيت او شاعري

سلېمان کامل

حاجي صاحب نواب خان نواب د مردان ښار اوسېدونکے دے چې په
ږ ژبه کښې شاعري کوي او د "زخمي زخمي حالاتو په خيګر کړم" په نوم
معري مجموعه چاپ شوې ده . هسې خو په مردان کښې ګڼ شمېر
ران او اديبان دي چې د پښتو ژبې د خدمت په حقله ئې يو جهان معترف
او د دې سيمې شاعرانو اديبانو پښتو ادب ته بېش بها بخښنې کړي
په دومره ګڼ شمېر ادبي شخصياتو کښې د نواب خان نواب شخصيت
هغوي شاعري په دې وجه د توجه مرکز ګرځي چې حاجي صاحب
وف يو بې سواده شاعر دے . هر کله چې کوم بې سواده شاعر شاعري
، نو هغوي اولسي اصنافو کښې د خپل فکر اظهار کوي او دغه نمونه
همېشه په اخونانو بللے کېږي خو دلته خبره يوه پوټې مختلفه ده چې
حت به ئې د دې مضمون په راروانو کرښو کښې وشي . اول مونږ د
لمي نواب شخصيت ته خير کېدل غواړو . د يو چا په حقله دا وئيل چې د
ي شخصيت څنګه دے، په عمومي توګه وئيلے شي چې محنتي دے،
ن دے، ديانت دار دے او مخلص دے او داسې نور . ولې زهٔ فکر کوم
دا فقط يو توصيفي اظهار دے او زهٔ چې د ښاغلي نواب شخصيت ته
ر نظر ګورم نو دغه اوصاف ئې د نورو ډېرو خوبيو نه يو موټے خروار
. په انساني خصوصياتو کښې تر ټولو اهم خصوصيات دوه دي . يو هغه
: خدائے بادشاه د لورې ورته عنايت شوي وي چې ورته قدرتي يا غير

اکتسابي صفات وئیلے شي او دوېم خاصیت یا صفت هغه دے چې ان
ئې په ځان کښې په خپله پیدا کوي یا په قدرتي صفاتو کښې څۀ لږ
بدلون کولو سره ئې حاصل کړي او یا بیا د خپل چاپېر چل نه ئې د ځا
پاره واخلي چې دې ته اکتسابي صفات وئیلے شي۔ په قدرتي صفاتو ک
زمونږ رنګ، نسل، شکل او صورت ، بدني رغونه، ذهني صلاحیتون
ځینې داسې نور شامل دي ولې په اکتسابي صفتونو کښې د یو ان
علمي معیار یا ذهني سطح. د هغه کار روزګار یا پېشه او ورسره د
فکرئ توان یا خیالات شامل دي ۔ هر کله چې مونږ دغه دواړه ذکر ش
خصوصیات په نظر کښې ونیسو نو ترې نه د یو انسان د شخصیت په ۔
یوه رایې قائمولې شو ۔ په دې خبره کښې هېڅ قسمه د شك او ش
ګنجائش نشته چې د شخصیت په پېژندنه کښې مونږ سره تر ټولو اعلې
ارفع مثال یا ائیډیل شخصیت د اقائے نامدار سرورِ کونېن خاتم النب
جناب محمد رسول الله صلی الله علیه اوله وسلم شخصیت دے۔

د ښاغلي نواب د شخصیت د تشریح په حواله ځینې نکات او مطال
بحث پامته دار دي۔ څنګه چې وړاندې کرښو کښې د یو شخصیت اکتساب
غیر اکتسابي اړخونو ته اشارې وشوې نو دغه شان د یو انسان د شخصیت
اړخونه هم دوه دي۔ یو ښکاره یا ظاهري او بل باطني۔ ظاهري اړخ هغه دے
نورو خلقو ته په نظر راځي چې پکښې د یو انسان شکل و شباهت او د هغۀ ر
شاملې دي او په دننې اړخ کښې ئې عقل، علم، جذبات، احساسات او رجحا
وغیره شامل دي۔ په عمومي توګه د یو انسان ظاهر د هغۀ د باطن عکس ګڼلے
البته ځینې انسانان په عارضي توګه په خپل باطن باندې پرده اچوي۔

ښاغلے نواب په مردان کښې په باړي چم کښې اوسي ـ هم دا ئې د زېږېدنې مسکن دے ـ دوي څۀ موده په پېښور کښې هم اړولې ده ـ هغه وخت چې د دوي والد صاحب په پېښور پوهنتون کښې د تېل مالګې دکان لرۀ ، حاجي صاحب موصوف هغه وخت 23 کلن وۀ چې د دکان په کار کښې به ئې د خپل پلار سره لاس کوۀ ـ څۀ موده پس ئې په خېبر مېډيکل کالج کښې کېنتين واخستۀ ـ دا هغه وخت وۀ چې د ښاغلي نواب په شخصيت کښې بدلون راغے ـ ځينې غېر اکتسابي خصوصيات يا صفات ئې په اکتسابي خصوصياتو کښې بدلول شروع شو ـ

د ښاغلي نواب د زده کړې زمانه له بده مرغه په مزدورۍ کښې تېرېده، خو خپل پدري اوصاف ئې له نظره نۀ غورځول او د جفاکشۍ سره سره ئې خوش اخلاقي، خوش ګفتاري او مېلمه دوستي په مزاج کښې شاملېدل ـ کومې ملګرتياګانې چې ئې په هغه وختونو کښې جوړې شوي دي هغه ئې تر اوسه پورې د ورورولۍ او پښتونولۍ په نۀ شلېدونکي تار تړلے ساتلي دي او هم دا هغه صفات دي چې د ښاغلي نواب شخصيت د هر چا توجه خان پله مرکوزوي ـ څنګه چې ځينې صفات د مستقل نوعيت وي او څۀ کېفيات د عارضي نوعيت وي دغه شان د ښاغلي نواب د تعلق پالنې، د ورورولۍ د ترون او د انساني همدردۍ صفات د مستقل نوعيت دي او که څۀ د عارضي نوعيت کېفيات ئې دي نو هغه دا دي چې دوي له ډېرو اولنو وختونو نه په بدني مشقت لاس پورے کړے دے. د پېښور نه چې واپس مردان ته راستون شوے دے نو د خپل روزګار په لړ کښې د سعودي عربستان په رېګستان کښې ئې هم شپې ورځې اړولے دي ـ هلته ئې هم د

خپلې انا صفت نهٔ دے مجروح کړے ، په مسافرۍ کښې ئې هم کلي و
خوي نهٔ دے بدل کړے. په پردیس کښې ئې هم مېلمه پالنه او ملګرتیا پاا
په نره کړې ده. څکه خو ئې روپۍ ونهٔ ګټلې البته د حج فریضه ئې پکښې ا
کړه چې دا ئې هم خوش بختي ګڼلې شو.

مونږ چې د یو انسان مستقلو صفتونو ته ګورو نو د هغې د ارتقا
شا یو لویه زمانه پرته وي. په دغو کښې بدلونونه په قلاره قلاره او وار و
راځي. دغه صفتونه د یو انسان د پوره ژوند ملګري وي. کهٔ وګورو نو د
انسان علمي او عقلي سطح په یوه لویه موده کښې وده مومي او په دې کښ
د بدلون راتلو رفتار د کلونو په مناسبت راځي خو د دې په ضد د یو انسان
غمونو یا خوشحالیو کېفیات ېخي عارضي وي او په کښې بدلون ډېر
واقعه کېږي. هر کله چې حاجي صاحب نواب خان نواب په خپلو مستق
عادتونو باندې قایم او محکم ولاړ دے نو دغه شان ئې د ځینې وختونو
خفګان ، پرېشانۍ او غصې جذبات هم مخفي نهٔ پاتې کېږي چې مونږ ئې
حاجي صاحب د شخصیت روڼ صفت ګڼو او وئیلے شو چې دغه عارض
کېفیاتو د حاجي صاحب شخصیت یوستوے کړے او د بې ایمانۍ او تص
له الودګۍ ئې پاك او صفا ساتلے دے.

د حاجي صاحب د شخصیت په حواله ځینې نورې خبرې هم زما
نظر کښې دي چې څهٔ به د هغوي د شاعرۍ په حقله د بحث په اوان کښ
مخې ته راځي خو هر کله چې انساني ذهانت د شخصیت یو اهم جز دے د
شان مونږ د حاجي صاحب په یو وخت د ډېر بدني مشقتونو، د کلي کلوېغ
د پالولو د ریاضتونو. د روحاني سکون د حصول دپاره د مروجه عبادتو

ه د خپلې شاعرۍ په حقله خپل افکار په ځا ے ساتلو د پاره تګ او دو د
وي په ذهانت دليل فراهم کوي نو د هغوي قوت برداشت هم د نمايان
لو نخښې ښنباني په ډاګه کوي او دا هر ځۀ چې هغه په يو تسلسل سره
ي نو د دې نه ئې د ذهني پختګۍ درك هم ولاړېږي خو چې د هر ځۀ د پاره
نږ د حاجي صاحب موصوف بدني ناروغيو ته پام وکړو نو وښيلے شو چې د
ۀ په شخصيت کښې د صبر او شکر يوه بېش بها ماده هم پرته ده. هسې
صبر او شکر د انساني ژوند د يوې معنې دوه بيل بيل مطالب دي چې د
ند ټول دارومدار پرې روان او جاري دے. په انساني شخصيت کښې د
ند د تېرولو د پاره تر ټولو اهمه وسيله او ذريعه د يو انسان همت ، محنت
بدني مشقت دے چې په عرف عام کښې ورته خلق مزدوري وايي. مونږ
، د حاجي صاحب موصوف دغه زيار اېستنې ته ګوروي نو په ظاهره خو
ه د فروټ منډۍ يو کارکن دے ولې کۀ مونږ کۀ د دۀ دغه روزګار ته د دۀ
نساني او اخلاقي رويې په تناظر کښې خير شو نو په هغۀ کښې د "ټيم
رټ" يوه نۀ ختمېدونکې ماده الله پاك وديعت کړې ده چې د دۀ شخصيت
ې يوه مهينه او سپينه خلا او ښکلا بخښلې ده. "ټيم سپرټ" د انساني
سياتو په اړوند هغه جذبه ده چې يو بنده په کښې په خپل ځان د انحصار
، سره په بل هم انحصار کوي او دغه کار حاجي صاحب موصوف په دومره
ي او ښائسته توګه تر سره کوي چې د يو ساده رزګار نه ئې هنر جوړ کړے
، چې د ځان نه پرته د نورو ډېرو حاجت مندو د متحرك ساتلو، ژوند ته د
لو او د روزګار وسيلې مهيا کولو سامان فراهم کوي. د حاجي صاحب
سوف دغه ادا کۀ يوې خوا ته د دۀ خود انحصاري نمايان کوي نو بلې خوا

ته په بل انحصار او اعتماد هم په ګوته کوي چې مونږ ئې د دهٔ یو قائدانه صلاحیت ګڼلے شو. په خان انحصار په خپلو متو باور دے چې د شخصیت د پېژندنې په لړ کښې ورته احساس ذمه داري هم وئیلے شي چې ورسره د یو انسان قوت ارادي او خود اعتمادي هم ملګري وي او هم د دې اعمالو د خېټې نه د شجاعت او بهادرۍ نفوذ کېږي. هر کله چې مونږ د حاجي صاحب موصوف دغه عملونو ته ګورو نو د دهٔ په حقله په دې خبره کولو کښې هېڅ ابهام او شك ته نهٔ امادہ کېږو چې هغه یو کلك او نهٔ ویرېدونکے انسان دے. د چستۍ. شجاعت او بهادرۍ سره سره هغه یو انصاف پسند انسان هم دے خو پرته له دې په هغهٔ کښې د ایثار یوه داسې جذبه هم موجوده ده چې د دهٔ د شخصیت چینه ئې تانده او بهانده ساتلې ده. د ایثار دغه جذبه ئې د سخاوت په کالیو ښائسته او مرمرینه ده او هم دغه جذبې ئې شخصیت ته یوه پښتنه خلا بخښلې ده چې په ظاهري حواله هم ښکلے او روڼ شخصیت دے او په باطني توګه هم سپین سپېڅلے دے.

لکه زما به ډا خبره ډېرو ملګرو محسوس کړې وي چې حاجي صاحب موصوف د رشتو د تقدس لحاظ او خیال ساتلو کښې د اسلامي روایاتو سره سره د پښتني اقدارو په اصولو کلك کاربند او پابند دے. خپل ورونه ئې خان ته نزدې ساتلي دي. د خوېندو خورلېو تپوس پښتنه. راشه درشه اختر شوقدر ئې په نرد کړې دي او دغه شان ئې هغوي سره د خپلوۍ د احترام د جذباتي تړون مزے شلېدو له نهٔ دے ورکړے. هر څو کهٔ دا زهٔ ګڼم چې زما دغه دعوی د مثال محتاجه نهٔ ده خو یو مثال ئې راوړل ضروري ګڼم. هر کله چې د خپل یتیم وررور بچي ئې د خپل قد په سبوري داسې زوزول

چې هغوي له ئې د بې پلاره کېدو احساس ورنهٔ کړهٔ بلکې دا خبره د مبالغې نه څو چنده په هورته ده چې د خپل بچو نه ئې ورله زیاته مینه ورکړې ده۔ د غنا دې هنر ئې د سخا د ذوق په ښکلا کښې دوه چنده اضافه کړې ده څکه خو ئې د تندي په ورین ډاګ چرې هم ساګ سیلۍ نهٔ دے وړے او هم دغه وجه ده چې د حاجي صاحب موصوف رزق پراخه دے او په ژوند کښې ئې اساني او اسودګي پرېمانه ده۔

حاجي صاحب نواب خان نواب چې له کله ما پېژندلے دے او په شخصیت مې ئې غور او فکر کړے دے نو د لالچ د خیچن والي نه مې پاک محسوس کړے دے او قناعت مې ورسره مل لیدلے دے خو دې سره پېوست د دوي معامله فهمي هم راباندې منعکس شوې ده۔ د اېم اېم اے په وختونو کښې د دوي په روزګار کښې د وخت حکومت دخیل شهٔ او دوي ئې د سبزي منډۍ نه پاځول او د خپلې خوښې منډۍ ته ئې لېږل غوښتل نو په مزاحمت کارانو کښې حاجي صاحب موصوف سرفهرست وهٔ چې د ډېرو احتجاجونو. لاریونونو او وهلو ټکلونو نه وروستو د دوي خبره ومنلې شوه چې په تنیجه کښې ئې حاجي صاحب او د دهٔ ملګري د دوي د خوښې ځاے ته پرېښودلي شو او د دوي په ضد ولاړ خلق دوي ته ملامته او کوز سترګي شول او تر ننه پورې دوي ډېر په کامیابۍ سره په خپل دغه ځاے کښې کار کوي۔ دا ګټه د دوي د مستقل مزاجۍ. شجاعت او بهادرۍ په صفتونو دال دے۔

د حاجي صاحب نواب خان نواب سره د خپل تعلق په اوږدو کښې ما د ده په شخصیت کښې ډېرې خبرې محسوس کړي دي، شاید چې زهٔ په تحریر کښې د اظهار د قوت نه بې برخې یم ګنې ډېر څهٔ پرې لیکلے شي۔ دهٔ

سره په مجلسونو کښې د ناستې په دوران کښې مې په غيبت کولو نهٔ دے اورېدلے. د چا نه نفرت کول ئې ما نهٔ دي محسوس کړي. د خوف په ماحول کښې مې نهٔ دے موندلے. پښتو سره د بې کچه مينې په اظهار مې وياند ليدلے دے او دغه ئې په ترجيحاتو کښې اوسېدلې ده.

هر کله چې يو هيره د کان نه راوښکلې شي نو دا فقط د کاڼي يوه وړه شان ټوکړه وي خو کله چې د يو هنر مند جوهري لاس ته ورشي او هغه ئې وتراشي نو ترې نه يوه قيمتي هيره يا ملغلره جوړه شي. دغه شان د يو انسان په شخصيت کښې تراش خراش هم يو اهم کردار لري. د انسان د شخصيت په تراشلو او سينګارولو کښې د مور پلار، استاذانو او دوستانو يا ملګريو نورے لاس وي. د حاجي صاحب د شخصيت په حقله د بحث په دوران کښې مونږ د دوي د والد صاحب ارواښاد ګل کريم خيني اوصاف سرسري بيان کړل خو وړاندې چې مونږ د حاجي صاحب موصوف په حقله خينې توصيفي حقائق مخې ته کړل نو دغه د دوي د والدينو عنايات دي چې ورته په ورثه کښې پاتې دي خو دې سره سره چې دوي ته په پېښور کښې کوم ملګري په لاس ورغلي دي هغوي هم د حاجي صاحب د شخصيت په رغونه کښې د رڼا د جوهر په پيدا کولو کښې د بخل نه کار نهٔ دے اخستے. د دې خبرې اعتراف حاجي صاحب په هره موقع په ډېر وياړ او د تشکر په لب او لهجه کښې کړے دے او په هر وخت کښې ئې منونکے دے. په دغه ملګريو کښې يو د قدرمن اباد حسن خان خټک او دويم د ښاغلي محمد ...رف سنګين نوم شامل دے. دغه دواړه ښاغلي د علمي کورنيو سره تعلق لرونکي خلق دي. اول الذکر د ګران پرېشان خټک ورارهٔ دے چې د حاجي

ـاحب موصوف د پېښور د استوګنې په موده کښې په خېبر مېډیکل کالج
ښې نوکر وۀ چې بیا وروستو صوبائي اسمبلۍ ته لاړۀ او هلته خپل فرائض
ـ سره کړۀ. موالخر الذکر صاحب هم د یوې علمي کورنۍ چشم و چراغ دے
ې والد صاحب ئې یو بې بدله دیني عالم وۀ او دے په خپله په خېبر
ډیکل کالج کښې ملازم دے. دواړه یاد شخصیات شاعران دي، هغه
خت کښې به ئې ادبي هلې ځلې کولې. دا د کال 1984ء خبره ده چې دا
خت نواب صاحب د 23 کالو خوبرو زلمے وۀ او تازه تازه د مردان نه پېښور
، د والد صاحب په بدرګه کښې د روزګار په تکل تلے وۀ. حاجي صاحب د
پلو ملګریو په صحبت کښې څنګه کولے شو چې ورسره په ادبي کارونو
ښې برخه وانۀ خلي. لهذا حاجي صاحب موصوف هم د خپلې شاعرۍ
اپیرۍ له خوبه پاڅوله او لاس ئې پرې واچوۀ، د ادبي دنیا په سبل ئې روانه
ۀ او نن دا دے حاجي صاحب موصوف د یوې شعري مجموعې "زخمي
ـمي حالاتو په خیګر کړم" خالق دے. په دغه وختونو کښې به دوي په
ـیکه او په قاعدګۍ سره ادبي زیار باسۀ. دوي په کال 1985ء کښې د
ـنګیال ادبي لیکوال" په نوم یوه ادبي ټولنه هم جوړه کړې وه چې په ترتیب
ـه به ئې ادبي هلې ځلې کولې. حاجي صاحب د خپل ژوند دغه برخه د ځان
ـاره یوه زرینه دوره ګڼي او په ډېر جذباتي انداز کښې ئې ذکر کوي.

د پورتني بحث مطالب د "زخمي زخمي حالاتو په خیګر کړم" د
ـلي شهادتونو د خلاصې خېنې څو کربښې دي. دا شعري ټولګه چې په
ـل 2014ء کښې په اول ځل چاپ شوې ده چې پرې سریزې ښاغلیو سید
ـابر شاه صابر او اباد حسن خان خټک لیکلي دي. دواړو ښاغلیو د حاجي

صاحب د ذات او شاعرۍ په حقله خبرې کړي دي . اوس چې زهٔ د دې څو کرښو لیکلو جسارت کوم نو باید چې د خپلې ناپوهۍ د ملامتیا په پلمه د حاجي صاحب موصوف د ذات او شاعرۍ په حقله د جاج اخستو په لړ کښې د تېروتنو پېشګي معذرت وغواړم.

حاجي صاحب د کتاب لوستلو نه بې برخې دے خو د هغوي ځینې عادتونه د علم او پوهې د حصول خپل کړي دي . د مثال په توګه هغه په قاعده سره د ملګریو کلامونه اوري او ورسره په بحث کښې شرېږي ، خپل کلام سملاسي ښاغلي سنګین ته اوروي او هغه ئې په کاغذ محفوظوي ، د دې نه علاوه د حاجي صاحب خپله مشاهده هم توانه ده او رېډیو هم د هغهٔ مستقل ملګرے دے . له دې هر څهٔ پرته د حاجي صاحب د پېښور د وختونو ادبي هلې ځلې د هغهٔ په ادبي روزنه کښې د ګټې وړ اضافه کړې ده . هم دغه وجوهات دي چې حاجي صاحب د اولسي اصنافو په ځاے غزل وئیلو ته رجوع کړې ده او تر څهٔ حده ئې نظمونه هم وئیلي دي . مونږ وئیلې شو چې حاجي صاحب موصوف د خپل دغه خواریو له برکته د ادب په اهمو ضرورتونو اګاه دے . د هغهٔ سر په دې هم خلاص دے چې ادب د ژوند د پاره څهٔ معنې لري او ادب د پاره د ادب په کوم مفهوم کښې پکارولے شي .

څنګه چې مونږ خبر یو چې ادب د پاره د ادب یا ادب د پاره د ژوند دا بحث نوے نهٔ دے . په خاصه توګه په کال 1917ء کښې چې په روس کښې د بالشوېك (سوشلسټ) انقلاب برپا شو نو ورسره ئې د اېشیا په ملکونو کښې په سیاسي تحریکونو هم اغیزه وکړه . د اېشیا نه علاوه په یورپ کښې هم "ادب د پاره د مقصد" یو نظریاتي بحث ونښتهٔ او ورته پذیرائي

هم حاصله شوه. بلکې په برصغیر کښې خو هډو ترقي پسند تحریك شروع شۀ. ظاهره خبره ده چې د دغه تحریك اثر په د ایشیا په ټولو ژبو خپل نفوذ وکړۀ او ادب د پاره د ادب په ځاے ادب د پاره د ژوند نظریې وده وموندہ. دلته مونږ د حاجي صاحب موصوف په حواله د دې بحث نه ډډه کوو ځکه چې په دې حقله په ادب کښې ډېرې خبرې شوي دي او ما نه هم د جمله اعتراضیه په توګه وشوه. ولې بیا هم په مجموعي طور چې د پښتو شاعرۍ په قسمونو نظر اچوو نو دوه قسمه شاعري مو تر نظره کېږي. یوې ته په ادبي اصطلاح کښې ادبي شاعري او بلې ته اولسي شاعري وئیلے شي. اګر چې د شاعرۍ ځینې پوهان د اولسي یا عوامي ادب اصطلاح سره په هغو معنیو کښې نۀ دي متفق کومه چې د دغه دواړه قسمه شاعري خپلو کښې سره بیلوي او ادبي شاعرۍ ته هم دیو معنیو کښې اولسي یا عوامي شاعري وایي چې دې قسمه شاعرۍ کښې هم زیاته د اولس یا عوامو ترجماني او نمائندګي کېږي او دا نظریه د ترقي پسندو لیکونکیو د ادبي تنظیم "انجمن ترقي پسند مصنفین" (1935-36) لکه چې پورته ذکر وشۀ، نه راپه ډېخوا په ادب کښې رائجه ده چې دوي ادب د اولس نمائنده او ترجمان ګڼلو او د یو تحریك په شکل کښې ئې نن هم ګڼي خو هر کله چې مونږ د دغه دواړه قسمه شاعرۍ کښې د امتیاز کرښه راکښلې ده نو کۀ فکر وکړو په ادبي شاعرۍ ډېرو لیکونکیو د خپل ذهن او زړۀ زور استلے دے او دومره څۀ ئې پرې لیکلي دي چې کۀ نور څۀ پرې ونۀ لیکلے شي هم به دغه کافي وي ولې په اولسي ادب یا اولسي شاعرۍ باندې ډېرو کمو لیکونکیو طبع ازمائیلې ده خو دا خبره هم د چا نه پټه نۀ ده چې اولسي ادب یا اولسي شاعرۍ ته کومو پوهانو او عالمانو لیکونکیو توجه کړې ده د هغوي تعلق د ادبي شاعرۍ سره دے.

اولسي شاعرانو فقط شاعري کړې ده او نثر طرف ته ئې ډېر پام نهٔ دے کړے. د دې يوه وجه دا ده چې اولسي شاعران اکثر بې سواده وي او څهٔ ته چې مونږ ادبي شاعران وايو د هغوي تعلق د ليکلي لوستلي طبقې سره دے ځکه نو مونږ ته په ادبي دنيا کښې په نثر کښې د اولسي شاعرانو هېڅ اثار او افکار په نظر نهٔ راځي. دا بحث مو د حاجي صاحب موصوف د ادبي شاعرۍ په تناظر کښې وکړهٔ چې باوجود دخپلې بې ارزۍ ئې د خپلو جذباتو د اظهار د پاره د غزل لمن نيولې ده.

مونږ گورو چې په پښتو شعري ادب کښې غزل د روښانې تحريك د لړمون نهٔ وزېږېدهٔ او بيا مېرزا خان انصاري د غزل په ليك لاس پورې کړهٔ. دغه تاريخي سفر چې ګام په ګام وړاندې روان شهٔ نو ملا ارزاني خوېشکي د وړومبي صاحبِ ديوان شاعر په حېثيت څان معارفي کړهٔ. بيا د پښتو زرين دور دغه سلسله په ډېر شعوري انداز کښې وړاندې بوتله چې وروستے سر ئې د حمزه بابا په نوم ودرېږي. په جديده دوره کښې غزل د خپل توان نه هم په هورته د ادبي دنيا په اسمان رنګارنګ ستوري وځلول. په دغه ستورو کښې د يو نوم نواب خان نواب دے چې زمونږ د دې مضمون سيګاوڼ دے.

هسې هم کومو شاعرانو چې د عربۍ او فارسۍ په تتبع کښې شاعري کړې ده، هغه د عربۍ اوزانو او بحور پېرو دي چې په عروضو کښې ئې شعرونه وئيلي دي. مثلاً قيصيده، غزل، رباعي، مسدس، مخمس، مسبع او معشر وغېره. بل قسمه هغه شاعري ده چې نهٔ د عربۍ د اوزانو او شعري اصولو تابع ده او نهٔ د فارسۍ ، بلکې د پښتو د خپل مخصوص روايت او

مزاج سره تړلې د ملي، عوامي او اولسي طرزونو ، وزنونو ، بحرونو او اهنگ سره سمون خوري او دا قسمه شاعري په اولسي يا ملي شاعرۍ بللے شي چې اکثر ئې شاعران له يادو يا پ، يادو وايي او مجلسيان ئې د پښتنو په حجرو کښې د ټنگ ټکور او سازونو سرودنو سره په خوند خوند اوروي ـ د دغه قسمه شاعرۍ زياته برخه يا زيات مقدار سا خو ورك شوے دے يا ياد نهٔ دے پاتې شوے او يا هغه زړاهٔ بوډاگان زمونږ له مينځه تللي دي چا ته چې د پخوانيو شاعرانو (اخونانو) اولسي شاعري ازبره وه او د دې وجه هم دغه پورتنے بيان شوے حقيقت دے چې دغه شاعران بې سواده وو ـ ځکه نو دغه شاعري ډېره کمه په ليك کښې راغلې ده ـ لکه لنډۍ (ټپه) لوبې ، بدلې، نيمکۍ او چاربېتې وغېره ـــــ خو زمونږ شاعر ښاغلي نواب خان نواب دغه اولسي اصناف د خپلې شاعرۍ له مضوعاتو څنې خارج گرځولي دي.

ښاغلي اباد حسن خان خټك د نواب صاحب په کتاب د ثبت شوې بزې په مينځومانه کښې ليکي چې "نواب خاطر ثاني دے" خو زهٔ د نواب حب په شاعرۍ کښې د خاطر نه زياته سنجيدگي او متانت محسوسوم ځکه : دواړو د تقابلي جائزې محتاجۍ ته اړتيا نهٔ لرم او د حاجي صاحب د مرۍ په حقله د ځهٔ ونيلو غوره انداز د هغوي کتاب گنم چې ما د پاره يو اهم ل دے ـ دوي د پښتو د شعري ادب په اصنافو کښې زياته توجه غزل ته کړې د کتاب په سر کښې ئې نعت مبارك راوړے دے ـ دوېم ئې د مور په حقله نوم عقيدت د " بې نظيره مور" په عنوان سره محفوظ کړے دے ـ د يوې .رې او د وطن په حواله د ليکلي نظم " ملي سندره" نه علاوه په ياده شوې موعه کښې نور ټول غزليات دي.

د سر ...احب د شاعرۍ په مجموعي افکارو کښې د حسن و عشق



Scanned by CamScanner

سرد سره د خپلو روایاتو. دودونو. د وطن سره د مینې او د انساني همدردۍ اظهار ډېر په برجستګۍ شوے دے هم دغه د دوي د شاعرۍ ځانګړتیا ده. هم دغه ادا ده چې دوي د خپلې درجې د شاعرانو نه په امتیاز ساتي. هم دغه ښکلا ده چې دوي د خپل قد د شاعرانو نه جګوي.

د نواب صاحب د شاعرۍ اهم موضوعات پښتو. پښتونولي، مېړانه. غېرت. ترتوب. کلے. کلوبغي. ورورولي، مینه. حسن او خواخوږي دي. انسان دوستي. ښېګړه. د وطن مینه هم د دۀ په شاعرۍ کښې ښکاره نخښې دي. په فطرت مئین دے. سادګي ئې خوښه ده. د دغه سادګۍ اظهار هم ډېر په ساده انداز کښې کوي.

هر څو کۀ د حاجي صاحب نواب خان نواب شاعري د وضاحت، تشریح او توصیف محتاجي نۀ لري خو د دوي د ډاډګېرنې د پاره یو کوټلي جاج ته اړیتا لري ولې زۀ خپلې کم نصیبۍ او کم مائیګۍ سره څۀ وکړم چې د غوښتو باوجود ئې هم نۀ شم کولے. البته د دوي په مجموعه باندې په سریزو کښې د شوي بحث د پاره د فاضل سریزه نګارانو لیکنو سره نۀ یواځې متفق یم بلکې ممنون ئې یم چې زما د پاره ئې په دې لړ کښې اساني پېدا کړې ده خکه نو زۀ په دغه لیکنو اکتفا کوم او د حاجي صاحب موصوف د ښۀ صحت. دراز عمر او د نورې ښې شاعرۍ کولو د پاره د پښتو او پښتنو د روڼ سبا په هیله د الله تعالیٰ په دربار کښې خواست ګار یم

......***......

# روغانے بابا او د امن تصور

اقبال شاکر

امن په سماج کښې د هغې کېفیت او احساس تصور دے چرته چې وند او د ژوند معمولات په انفرادي او اجتماعي توګه د تشدد او ختلاف نه پاک او يرې ترهې نه بيخي ښنګ وي۔ امن د انسانانو . ناموںو او ملکونو په مېنځ کښې د مثبتو .و صحت مندو اړيکو نوم دے۔ په پرامنه معاشره کښې هر وګړي ته د ترقي او خوشحالي لارې چارې پرانیستې پرتې وي۔ خو کله چې سماجي شعور په ذهن او ټولنه کښې د پيدا شو او راپورته شو سوالونو د جوابونو پيدا کولو نه قاصر شي نو سړے د ذهني انتشار ښکار شي او يا بيا په نورو تکو کښې د دې ذهن پرامنه او پرسکونه پاتې نۀ شي او بيا چې کله دغه مرض په ټوله معاشره کښې يو وبائي صورت اختيار کړي نو د ذهني مرضونو سره سره سماجي اړے ګړے . مسلکي انتشار. قامي. بې آرامي او بين الاقوامي ستونځې راولاړې شي۔ د انسانانو . معاشرو او هېوادونو مفادات د يو بل سره متصادم شي د حقونو او فرائضو يو غېر متوازن نظام مخې ته راشي د حکومتونو او ادارو توجه د عوامي خېر ښېګړې د منصوبونه واوړي او ترجيحات يې داسې شي چې که حاصل هم شي خو د فلاح وبهبود څه واضحه منظر نامه نۀ لري۔ فکرونه يوشان بنلے کېږي او حالات په بل طرف روان او هغۀ د رحمت شاه سائل صېب خبره

چې په حالاتو او په فکر کښې تضاد پيدا شي<br>
په داسې وخت کښې د سړي نه لېونے جوړيږي

او بيا د لېونو نه ځانله ځانله هم او په مجموعي توګه د هر ښګه او هر قسمه عمل او رد عمل توقع کېدے شي۔

دا نړي چرته هم په څه نه څهٔ حواله بې جنگه شوي نهٔ ده او که چرته شوې هم ده نو د دغې صلحې او امن په وخت کښې د جنگونو تيارے شوے دے. تورې . ډالونه. غشي . لينډې، چړې، کالتوس، بمونه ، بارود . ټوپکې تماچې. توپونه. ټېنکونه، جازونه. مېزائلې او تر دې چې ايټم بمونه او هائيډروجن بمونه پکښې جوړ شوي دي. غرض دا چې انسان د جنگ د قېد او د يرې نه چرته هم آزاد شوے نهٔ دے. په حالات جنگ د امن خوبونه ويني او په حالات امن او صلحه کښې د جنگ تياري کوي.

دا خبره د نمر په شان ځليدلې او ښکاره ده چې زمونږ په دنياگي کښې په مذهبي عقيدو کښې منفي رجحاناتو، د سرمايه دارانه او جاگيردارانه نظامونو سپاکي د سائنسي ايجاداتو بې رحمه وجودونو، ړندو سياسي وابستگيو . د ماده پرستي او ازم پرستي هيجان او حتي چې د قام پرستي او هېواد پرستي لېونتوب د حضرت انسان مقدسه او محترمه وينه ډېره په بې رحمي او بې دردي توئ کړې ده.

خو د نيکه مرغه بل طرف ته ادب بلکې ساهو ادب د دغه ژوبل ژوبل انسان په بدن او روح رحم کړے دے د هغه د روحاني تسکين او آرام سامان ئې پېدا کړے دے او د هغه د بدن زخمونه ئې د خپل تخليق په اوښکو پاک کړي او وينځلي دي او داسې دارو او مرحم پټې ئې ورله کړې دي چې دغه بې حوصلې او خواروزار انسان ئې ژوند ته هڅولے دے. توان ئې ورله ورکړے دے. طاقت ئې پکښې پېدا کړے دے د مينې او ښکلا په جنتونو او باغيچو ئې گرځولے دے او د خپل نيک او ساهو مقصد د حورو د غليمانو خوبونه ئې پرې ليدلي وي او کله کله ئې دغه خوبنه رښتيا کړي هم دي.

دغه رښتيا خوبونه د جذبې د صداقت ، د جغرافې د حدونو نه په اخوا فکرونو د مسلکي ډلو پرو نه د پاکوالي او نسلي او لساني فرق نه د

پورته سوچ په زور د منزل غبرګ ته رسېدلي دي.

په دې کښې هېڅ شک نشته چې ادب د معاشرې د حسن او اصلاح د پاره تخلیق کېږي خو ښهٔ او افاقي تخلیق ذهني سکون اطمینان او د امن نه ډک پُک ماحول غواړي نو د فکري او ذهني انتشار، طبقاتي لاندي باندي د څورېدلي احساس د بارودو په لوګو او بدو بریونو د لوګې تندې ، تربګنو دشمنو، سیاسي او سماجي اړي ګړي او ځان مرګي بربېدونو په دې بې ترتیبه او بې مرامه ژوند او حالاتو کښې به یو تخلیق کار خاورې اعلیٰ و ارفع ادب تخلیق کړي خو کله کله او چرته چرته د قدرت د تخلیق رانې د یو فنکار تخلیل د اسمان لمنو ته اورسوي او داسې فن پارې مخې ته راشي چې ژوند ورته اوپسنېږي هم او ځان ددغې تخلیق په آئینه خانه کښې سنګارولو ته هم جوړ کړي او داسې فنکاران په یو قام یا خاوره کښې د ډېرې خوش بختي نه پېدا کېږي.

عبدالرحیم روغانے د پښتو شعر وادب هغه ځلندد ، مشهور او مقبول نوم دے چې هم په دغه نامساعد حالاتو او ژوند کښې یٔ یواځې د خپل زړهٔ نهٔ بلکې د ټول سماج د زړهٔ څړیکې سندرې کړې دي. او داسې یٔ سندرې کړي دي چې د سوات . ملاکنډ او د ټولې پښتون والې د مرغزارونو . سیدونو . ابشارونو په خوږه موسیقي کښې ئې د ښاپېرو هسې په پر کېفه انداز ټولو پښتنو ته رسولې دي.

روغاني بابا کم وبیش هره هغه خبره چې د انساني ټولنې عموماً او پښتنې معاشرې خصوصاً د اجتماعي او انفرادي ذهني او خارجي بدامني سوب ګرځي. په خپله دغه شاعري کښې په ډاګه کړې ده.

بابا په یو نظم "سیاسي تاجران" کښې وائي.

په خوله د مینې محبت او رورولي خبرې
زړهٔ کښې د کرکې د نفرت دلې دلې خبرې

په خُله نعرې د تحفظ امن وامان قلارې
زړه کښې د توب او مشين ګن او د ګولي خبرې
پټ په يورپ کښې فرنګي له سنه ستر ګه کوي
ښکاره د خوارې سر بيرې کابلي خبرې
په زړه کښې غواړې فحاشي بې حيائي د يورپ
په خُله د ننګ او د پښتو پښتونولوي خبرې
کلي په کلي دشمنو کښې مو خپل خپر لتهوي
زده کوي مونږ ته د جنګونو د سيالي خبرې
د سياست په مېله ګاه کښې سياسي تاجران
کوي د قوم د خرخولو د بولي خبرې
يو خوا د لوګې بيماري نه دا مرګو د بچو
بل خوا د ميو د مينا او د پيالي خبرې
اے روغانيه شاعري که پسې وقف کړمه
پوره به نه شي د درغل د درغلي خبرې

زما په خيال عبدالرحيم روغاني صيب د افاقي او اعلیٰ ادب په باره کښې د ټي ايس ايليټ دا خبره غلطه ثابته کړې ده چې!

"د کلاسک درجه تر لاسه کونکے تخليق هغه وخت امکان لري چې يوه معاشره د تهذيبي ارتقاء کمال او پختګي ته ځان ورسوي"

اوس که مونږ خپله ننې ټولنه په دغه تله تلل اوغواړو نو بيا خو دا امکان بيخي نهٔ وو چې روغانے بابا دې په ژوندانه لکه د کلاسک درجه ، شهرت او قبوليت اومومي. روغاني بابا د خپل تخليقي توان او سماجي شعور او اګاهۍ په زور معيارونه بدل کړل او په وينې وينې ، بې وزله ، بې انصافه. بدأمنه، بې حسه او منتشره معاشره کښې يې داسې فن پارې تخليق کړې چې د پښتون اولس او سماج د نباض او نفسياتو نه خبر شاعر

و اديب په حېث تولې دنيا اوپېژندو او اومنو يې هم.

زمونږ د نني ژوند د بدامني الميه دا ده چې دشمن چرته لرې ښه په ښلاره د ژوند د رنګينو او خمارونو نه مزې اخلي او دلته رور د خپل رور د نظريو، عقيدو، سياسي اړيکو او مسلکي ناپېژندلو مسئلو په بې بنياده بنيادونو وينې په داسې انداز کښې تويوي چې وحشت او دهشت ورته هم غريو اونيسي او دغه سازش ته روغاے بابا د دشمن د شېطاني جال وائي.

تکړې يې کړو تباه يې کړو خو بيا هم قلار نه دے
حسد په زړه کښې غېر متناهي دے د دښمن
څه داسې عجيبه د شېطاني جال ئې راخور دے
چې رور د رور د پاره سپاهي دے د دښمن

اکرام الله ګران صېب فرمائي

خبر دے که وژني مې خو خوله دې راله نه بندوي
دغه قاتل ته چې په ډکه خوله جانان اووايم

ادب د ابتداء نه تر اوسه د انساني ژوند د سکون ، اطمينان ، خېر ښېګړې او اصلاح د پاره د خپلې صحتمندي او پاکوالي په بنياد ډېر څه کړي دي او لا کوي يې. عمر له يې د ظلم ، جبر ، استحصال ، تشدد او استبداد غندنه کړې ده او د ژوند په يو ډغر يې د رښتياو او حقې خبرې طرف داري پرېښودي نه ده او عېن په دغه وخت کښې يې يوه داسې رويه يا مفکوره هم مخې ته راوړې ده چې په عام ژوند مشکله له څه کوې چې ممکنه هم نه ښکاري. لکه د ګران بابا دغه مذکوره شعر.

روغانے بابا هم په خپلو شعرونو کښې دغه رويه او مفکوره د يو امن پسند او مينه خورونکي شاعر په حېث وړاندې کوي او زما په خيال دغه نظريه يا فکر د ډېرو کمو شاعرانو په برخه کېدے شي. بابا وائي.

زما په زړه کښې چې د چا د خبر خواهي هڅه ده
د هغهٔ زړهٔ کښې زما غوښې ورتول پراتهٔ دي
قاتله روره زر مې مه وژنه لار صبر اوکړه
ستا ښېرازي له راله لار غونډې لیکل پراتهٔ دي

د روغاني بابا د شعر مدعا او مقصد د خپل اولس سماجي شعور معیار لوړول. سیاسي کردارنه بېدارول. پخول او د سیاست د کاڼلیچونو نه خبرول نفسیاتي مېلانونه او روئې رسا کول او بیا په دګه بنیاد امن عام کول هر کله پاتې شوې دي او دغه خبره چې شاعر Social Scientist وي د روغاني بابا د کلام په تله ښهٔ په پخو کانو پوره ښکاري. وائي...!

اے روڼو ګورے خیال کوئ شته داسې مشران
تنې ئ روهېلي دي کپري د انګلستان
چل مکر ئ مذهب دے په فساد ئ عقیده ده
د قوم په خونستان کښې ځان ګوري خانستان

او یا دا چې...!

دغه نخښې د ذلت دي چې اوده شي مشران
له بازانو چتې جوړ شي له زمرو نه ګیدړان
خپل وطن کښې بې وطنه خپل کنډر کښې کنډري وي
په خپل کور کښې حلالیږي ښهٔ جائز لکه چرګان

او دغه نظم بابا خوئ زمونږ د ټولنیز ژوند هره ستونځه او بې هسې په ډاګه کوي او زمونږ د اجتماعي ژوند د بې امني استعاره کوي ئ. لکه...!
مونږه تل د بل بابا ته خپل بابا وئیلے دے.

دغه خوش فهمي رابانډې خپل بابا بائیللے دے
مونږه د ښکاري د فریب مینې تېرایستلي یو

مـــونږه تــه د شــفقت پــه نامــه تــل دام غوړېــدلے دے
یــو هغــه مارغــان چې پــه پنجـرو کښــې شـور فریـاد کـوي
شــور ئې موســیقي پــه تــن ئې کــور د غېــرو ښــکلے دے
ده د ســـــر دښــــمه ســـــر خـــــوړلې نـــاپوهي زمــــونږ
مـــونږه تــل د غېـــرو ســــر د پـــاره ســـر خـــوړلے دے
اور اکثــــر د یـــو کـــوره پـــه کلـــي بانـــدې اولګـــي
خـــدائے ګـــو دلتـــه اور لـــه هـــره کـــوره لګېـــدلے دے

ن د مهذبې معاشرې ورمبي پېژندګلو وي۔ د تهذیب او تمدن دنګې
نګې ماڼي د امن په مظبوطو بنیادونو اودرېږي او د انساني معاشرې
صل حُسن، سپرلے ، ښېرازي، صحتمندي ، ګلونه ، سیندونه، ابشارونه
ږ بارانونونه هله سېوا کېږي او اولس ئې په خوږو مرېږي چې کله امن عام
ي۔ زما شاعر روغانے بابا په تړوله نړي کښې د امن یامته دار دے خو خبره
ې خپل کورته رارسېدلې ده چې کله څورېدلي احساسات تخلیق کېدۀ نو
غه وخت د بابا د وطن سوات ، امن مثالي وو خو نوره پښتونواله عموماً
و بره پښتونخواه خصوصاً د انتهائي بد امني ښکار وه نو دغه په
انسانیت مئین پښتون شاعر دغه سانده د ملاکنډ د پرامنې فضا نه پورته
کړه لکه چې چا ورته په غوږ کښې وئیلي وي چې دغه اور راخورېدونکے
دے او بیا دغه سانده د بابا د نغري سانده شوه ددغه نظم "دښمنان" هر
شعر د انسانانو په انسانانو او افغانانو په افغانانو د ظلم او زور زیاتي
ژوند تصویر دے۔ چې د یوې ژړونکي منظر نامې سره د بې وسي د اظهار
په جامه کښې د تاریخ پاڼو ته اوسپارلے شو۔ بابا وائي...!

توپونـــه راکتونـــه ســـرې ګـــولې او ســـرهٔ بمـــان
ورېـــږي پـــه جـــونګړو لـــه افغانـــه پـــه افغـــان

کـه سـېل کـوې نـو ورشـه تماشـه د قیامـت اوکـړه
چـــې اوونـــې کـــانې پـــه انســـانانو د انســـان
قـــدم پـــه قـــدم شـــه قصـــاب خـــانې د بنیـــادمو
نـــه ختـم بنیـــادم شـــو نـــه شـــو ســتړې قصـــابان
کـه یـو خـوا ې پـه کـور د اور لـوګي لمبـې خـورې دي
نـــو بـــل خـــوا ې باغونـــه ځنګلونـــه شـــو طوفـــان
کـه یـو خـوا ې د علـم ذخېـرې پـه اور سـتي شـوې
نـو بـل خـوا ې پـه مـال او پـه زر ګـډ شـولو تـالان
کـه یـو خـوا د سـپین اېـرو د زلمـو وینـې پرتـې دي
نـو بـل خـوا تـه پراتـه دي ټکـړې شـوي معصـومان
د داســې مظلومــانو حــال پــه څــه ټکــو بیــان کــړم
د چــا پــه حــال چــې اوښــکې تویــوي نــن دښــمنان

روغاني بابا په خپله مفکوره کښې د بدامني وجوهات د یو زېرک او انسان دوسته شاعر سره سره د یو پښتون مفکر او سماجي پوهان په حېث په ډېر زړه راښکونکي او کوټلي انداز کښې په ډېره اسانه پېرایه کښې بیان کړي دي.

زما په خیال که د روغاني بابا تخلیق د معاشرتي ناهمواري طبقاتي کشمکش. معاشي ستونځو. سیاسي اړي ګړي او په تېره تېره د بد امني د بنیادي وجوهاتو د معلومولو د پاره نصاب شي نو امکان لري چې انساني ټولنه د دغه رنځونو د وجوهاتو نه خبر شي او چې کله د رنځ تشخیص اوشي نو بیا ې علاج هم آسان شي.

زه دا هیله لرم چې که نور هېڅ هم او نه کړي خو د بابا دغه افاقي افکار به د مستقبل د خېړن کار کار په دې حواله ډېر آسان کړي چې هغه ته د دغه لوې انساني المې بدمني وجوهات او ناوړې کردارونه ډېر په آسانه ښکاره شي.

......***......

# د فرید جان استاد په کلام کښې "حق گوئي"

محمد سعید نادم خټک

سې خو د پښتو ادب لمن ډېر فراخه ده او ډېرو تکړه تکړه نوموړو ناعرانو ته ئې په هر دور کښې پخپله جولۍ کښې ځائے ورکړے دے. په ېره تېره په تېرو شوو پېړیو کښې ئې ډېر سپین زړي. صادق خلق پخپله من کښې ځائے کړي چې هغهٔ که یو خوا ته سوچه او کلک پښتانهٔ وو نو بل خوا ته ئې د پښتو ژبې او ادب بې پنا خدمت هم کړے او هغه داسې خلق وو چې اولسي شاعران.هم وو او في البدیع هم. په پښتو ادب کښې که مونږ گورو ډېر داسې نومونه زمونږ مخې ته راځي چې هغه خلقو د پښتو ادب پانگه ډېره درنه کړې. خو بیا هم هغه زمونږ د نظر نه پټ پاتې شوي دي. هغه وجه دا ده چې په هغه وخت کښې تحقیق دومره زور نهٔ وهٔ مونډلے چې هر شاعر و ادیب ئې معارفي کړے وے. الحمد الله نن که مونږ گورو نو ډېر داسې شاعران او د هغوي کلامونه زمونږ مخې ته راغلل چې واقعي هغو خلقو په هغه وخت کښې د پښتو ژبې او ادب ډېر خدمت کړے دے.

په دې حقله که مونږ اوگورو د فرید جان استاذ شمار هم په هغه شاعرانو کښې کېږي چې اولسي شاعر او في البدیع شاعر هم ورته وئیلے شو. چې د یو زرخېز فکر خښتن شاعر وهٔ. فرید جان استاذ په کال 1888ء کښې په ارمړ کلي کښې د فضل شاه په کور کښې زېږدلے وهٔ او په کال 1914ء کښې استاذ شهٔ او په کال 1926ء کښې په بندوبست کښې پټواري شهٔ چې د پاکستان د جوړېدو نه وړاندې خبره ده. او تر یو کال پورې پټواري وهٔ. او بیا په کال 1927ء کښې استاذ شهٔ او د پاکستان د جوړیدو نه پس ئې په کال 1957ء کښې د دې فاني دنیا کډه اونغاړله.

که مونږ اوګورو فرید جان استاذ په هغه وخت کښې شاعري کوله چې په کوم وخت کښې هيڅ هم نۀ وو ځکه چې پاکستان د آزادۍ هلې ځلې وې د وخت نا سازې هم وې او چې کله مسلمانان د پاکستان په آزادولو کښې کامياب شول نو هم دلته څۀ نۀ وو خو بيا هم فريد جان استاذ د خپل شعر د حق ګوئۍ په پارسنګ ډېر شهرت موندلے. دوي به په خپل دور کښې د مقابلې شعرونه وئيل او فريد جان استاذ په کلام کښې کثير الاصناف صفت هم لرې. ولې چې د دوي په کلام کښې غزل، چاربېته. رباعي. نظم. لوبه او سندرې هم شته او ورسره ورسره ئې نعتونه. مرثې. منقبتونه. ترانې هم ډېرې مشهورې دي.

د دې د ښۀ تکړه شاعر کېدو په دليل کښې دلته د حمزه بابا يو کلام حې د فريد جان استاذ په حقله ئې وئيلے دے.

چــــې د شــــعر پهلـــوان وۀ
مشــــهور مــــرد مېــــدان وۀ

د آمــد ئــې څــۀ تپــوس کــړې
د پګــــڼ چيتــــر بــــاران وۀ

لــږ چــې کســر بــه چــا اووې
بيــــا بــــه تنــــدر د طوفــــان وۀ

ګــذار اوخــوري لا قــوي شــي
بــــس پــــه مثــــل د ســــندان وۀ

د حمــزه نــه دې هېــر نــۀ شــي
هغــه څــوک وۀ فريــد جان وۀ (۱)

ې د حمزه بابا غونډې هستۍ د فریدجان استاذ په حقله خپل خیال
سې ټکو ښکاره کړے دے. نو د فرید جان استاذ په لوړتیا او په ښه
اعر کېدو کښې مونږ ته څۀ شک نۀ پاتې کېږي. ولې که فرید جان بابا
مونږ نه ډېر وړاندې ولې نۀ دے تېر شوے او ورسره که مونږ اوګورو نو
حمزه بابا د خبرې نه مونږ ته د فرید جان استاذ حق ګوئي هم په ډاګه
ېږي. چې واقعي فرید جان استاذ حق ګو شاعر وۀ.

اوس مونږ د فرید جان استاذ په کلام کښې حق ګوئي کتلو کوشش
و چې دوي په خپل شعر کښې دغه کار څومره په سوچه او په ښکلي
نداز کړے دے. لکه فرید جان استاذ وائي

هر یو تن به بس د خپل عمل پابند وي
دغه ناز بهروسے مۀ کوه په چا

دا دنیا د برق مثال دے فرید جانه
نن دې وار دے که د روغ کړې ربښتیا

چې په مرګ باندې دې ځلۀ نۀ ده لا ماته
فرید جانه پرې د رب وایه ثنا

څنګه ښکاره فرید جان استاذ دا خبره کړې، چې د هر یو تن حساب پخپلو
عملونو کېږي هسې بې جا دې څوک هم نۀ نازېږي. دا دنیا خو څۀ چې هر
څه دې هم اوکړل که هغه دروغ وي که ربښتیا چې تر څو مړ نۀ ئې نو ښک
اعمال او د خپل رب ثناء کوه.

دغه رنګ فرید جان استاذ چې د حالاتو نقشه ئې څومره په
سپېځلې طریقه راکاږلې ده او داسې ښکارې لکه نن سبا دا شعر چا
لیکلے دے لکه وائي.

کــار د دیــن او ایمــان پــه کښــې موقــوف شــي
هســــــې رنګـــــه خوشــــــنما ده دا دنیــــــا

فریـــد جانـــه پـــه ظـــاهر بانـــدې ښائســـته ده
نـــور پـــه شـــکل کښـــې بـــلا ده دا دنیـــا" (۵)

هسې که مونږ ګورو چې نن سبا یو مادي دور او په خلقو د مادیت
ره اثر شوے دے چې مونږ د خپل اصل کار نه خطا یُو۔

د دې نه پرته فرید جان استاذ د بدو چارو نه لاس پورته کول او
چارو مخ نیوے او بیا د مسلمان د پاره خو د ثواب او عذاب هڅه
هم ضروري وي۔ او د بدو چارو کوونکي احمق ګڼي لکه یو غل چې د
په پیسو جومات جوړ کړي د دغه رنګ خبرو غندنه په داسې ټکو
ي او وائي:

"بېـــداري هغـــه کســـانو تـــه پکـــار وي
چـــې د چـــا کـــور وي پـــه مـــخ کښـــې د ســـېلاب

پـــه بینـــا ســـترګو ډیـــر خلـــق نابینـــا دي
نظـــر نـــهٔ کـــړي د ثـــواب او د عـــذاب

بـــدې چـــارې چـــې اختیـــار کـــړي فریـــد جانـــه
پـــه بـــدۍ کښـــې لټـــوي احمـــق ثـــواب" (6)

سبا په خلقو د مادیت اثرات او الله پاک نه حیاء او دغه د هر کار په
و کښې د مشقت امر څه په دې ډول څرګند وي۔ او وائي:

"چـــې کـــوم ځـــاے کښـــې د دولـــت خبـــرې کېـــږي
غـــوږ دې ایښـــے وي پـــه هغـــه عبـــارت

هـر يـو كـار پـه مشـقت سـره حاصـل شـي
دا دليـل دے تـه لـه دې واخلـه عبـرت

هيڅ حيـاء لـه خدايـه نـه درځـي فريـده
چې پـه دې عمـل تـرې سـوال كـړې د جنـت" (۷)

دلته په دې ځاے كه مونږ ګورو فريد جان استاذ د حق ګوئى انتها كړې. ولې چې د مسلمان په حيث مونږ ټولو د پاره داسې حقيت ضروري دے او دا زمونږ ايمان هم دے لكه وائي.

"چـې د بـدو چـارو سـړے محفـوظ كـړي
نګهبـان مـې دے قـرآن دويـم حـديث

چـې د دوي پـه پيـروي مـراد تـه رسـم
فـيض رسـان مـې دے قـرآن دويـم حـديث

مشـرف دے مقـدس دے مقـدس دے
عـالي شـان مـې دے قـرآن دويـم حـديث" (۸)

څنګه چې په عامه توګه وايُو چې الله پاک مو دې اخره خاتمه په ايمان سره نصيب كړي. او يا زمونږ پښتنو كښې يو بله خبره كيږي چې "خدا ے دې په ګور اوشرموه" نو د دغه رنګ خبرو نه د بچ كيدو او د دغه خبرو په اړۀ چې كوم پيغام فريد جان استاذ په خپل كلام كښې ځاے كړے دے لكه وائي:

"بـس هغـه بـه دې حصـه وي پـه آخـر كښـې
كـه عمـل دې چـرې دلتـه وي اختيـار كـړ

سم په یو صف کښې روان شه چې کج نهٔ شې
زانے نهٔ ګورې چې نهٔ بیائي قطار کج

د غفلت نه فرید جانه رابېدار شه
هسې نهٔ چې دې آخر ته شي تول کار کج" (۹)

لطو خوبیو او خامیو د ګناه کارونو . ماشرې ناکامیو او سپک والي
د هغه څیزونو غندنه چې کومې مسلمان ته اسلام په حواله ممانعت لري
نهٔ دي کول پکار د هغه څیزونو نه ډډه کول او د مخ نیوي پېغام چې فرید
ن استاذ د شعر په ژبه ښکاره کړے دے هغه څهٔ داسې وائي:

"ما د زړهٔ خیالات اظهار کړه په کاغذ
نوشته مې دا اشعار کړهٔ په کاغذ

څوک چې بد کوي له بله بد به مومي
دا کلام مې اشتهار کړه په کاغذ

بې صبري او ډېر حرص سړے ذلیل کړي
خود ظاهر مې دغه کار کړه په کاغذ

چواري دروغ هر قسمه سړے سپک کړي
غلا زنا جوړ مې اشعار کړهٔ په کاغذ

هم غیبت چغل خوري کول لوے عیب دے
فرید جان مثل تیار کړه په کاغذ" (10)

دا رنګې که مونږ ګورو چې د مسلمانئ په حقله څه وائي نو د سړي دا
ان پېدا شي چې ګني دا اشعار د نني وخت پېداور دے چې نن سبا
ه په خُلهٔ مسلماني پاتې ده لکه وائي:

"د اخـــلاص مســـلماني نـــهٔ شـــوله پـــاتې
هـــر ســـړے دے د لبـــاس پـــه تټـــو ســـور

زهٔ فریـــد د زمـــاني حـــال تـــه حېـــران یـــم
نـهٔ پـوهېږم چـې تـرې لاړ شـم پـه کـوم لـور" (11)

مونږ که ګورو په معاشره کښې نن سبا چې کوم حال دے چې د مور او پلار خور او رور اولاد او د رشتو قدرداني په فقدان ښکاري او بیا په آخرت کښې خو دا رشتې هسې هم عبث دي. د دې دنیا رشتې که په دې دنیا د چا په کار راشي خو سمه ده ګني په اخرت کښې خو د دغه رشتو هسې هم څه ځاے او مقام نشته لکه وائي:

"د مـــولا پـــه اطاعـــت عبـــادت درســـت شـــه
چـــې نصـــیب دې پـــه آخـــر کښـــې شـــي مقـــام لـــوړ

د دنیـــا پـــه رور عزیـــز مغـــروره نـــهٔ شـــې
دا بـــه را نـــهٔ شـــي پـــه کـــار کـــه شـــي پـــه قـــام لـــوړ

فریـــد جانـــه د دنیـــا غمونـــه پرېـــږده
اجـل اېښـے دے پـه مـخ کښـې درتـه دام لـوړ" (12)

که مونږ اوګورو نو فرید جان استاذ چې په دغه ځاے کښې ئې په خپل کلام کښې د حقیقت ګوئی په لوړ بام ولاړ ښکاري، چې مثال نهٔ لري. لکه په قرآن پاک کښې الله پاک چې کوم ارشاد د زیات خرچ پحقله او د اسراف حقله فرمائي:

"ان المبذرین کانو اخوان الشیطین"

ترجمه: "بې شکه زیات خرچ کوونکي د شیطان رونه دي"

ارشاد پاک چې د یو کار داسې پېغام مونږ ته راکوي نو دغه ارشاد په
اظر کښې فرید جان استاذ په خپل کلام کښې څۀ داسې وائي

"هـر چـا زیـات کړلـو لاګـت د آمـدن نـه
د هـر چـا پـه ځـان بـلا شـۀ ډېـر اسـراف

د قیامـت پـه شـان د نفـس او نفـ ـبـازي ده
رور لـه روره پـلار لـه زوي دے خـلاف

ډېـر حـق پـه باطـل پـټ کـړو فریـد جانـه
لکـه تـوره چـې درون شـي پـه غـلاف" (13)

د فرید جان استاذ کلام د حق ګوئی نه ډک دے. ټول کلام کښې په هر
عر کښې د حق ګوئي مثالونه لېدلے کېږي لکه پاسني شعر کښې د
سراف په حقله وائي چې مونږ خپل آمدن نه خرچ سېوا کړو نو په دې
بب مونږ د بد حالی سره مخ او لکه د قیامت منظر دے. رور د روره پلار
زویه په خفګان دے او د حق او باطل تمیز مو نشته حق مو په باطل پټ
ړو دا ټول هغه کارونه او خبرې دي چې حق دي او څوک ئې هم د دې
کار نۀ شي کولے که زړۀ د چا ښۀ وي او که بد دا به مني او که دغه
یزونو ته زمونږ پام شۀ نو هیله ده چې زمونږ حالت به ښۀ شي

## حواله جات


فريد جان استاذ. مرتبه. اياز الله ترکزے. "ديوان د فريد جان استاذ" فريد جان پښتو ادبي مرکز ارمړ پېښور. 2017. مخ 12

2. همدغه مخ 17

3. همدغه مخ 18

4. همدغه مخ 21

5. همدغه مخ 24

6. همدغه مخ 39

7. همدغه مخ 58

8. همدغه مخ 49

9. همدغه مخ 71

10. همدغه مخ 93

11. همدغه مخ 101

12. همدغه مخ 111

13. همدغه مخ 140


......***......

# ”چترال ته سفر“ یو رپورتاژ

پروفیسر ډاکټر فخرالاسلام

چترال او چترالیان مې بې کچه خوښ دي. دا مینه مې پته نه ده ساتلې. زه ا خبره په جار وایم چې د چترال د ګلونو خوشبو، د میوو خوندونه او د . ګرو ښکلا بې مثاله دي. زما د پېښور پوهنتون د سبق ویلو زماني ۱۹۸۳ نه اوسه پورې نه شم ویېلې چې څو وارې به مې چترال ته سفر کړے وي. په کال کښې یو ځل ارو مرو هلته ځم. هغه وخت کښې به هم تلم چې د لوارۍ سرنګ نه وو او په ګران، کړ کېچن او کچه سړک به اول د لوارۍ غر سرته ختل وو او بیا به ددغې نه په ګرانه لاره باندې کوزېدل وو. او یو ځل خو مې دغه سفر د دیر نه تر دروشه پیاده هم کړے وو. زما د چترال په دے رپوتاژ کښې د یو نه څوڅو سفرونو تفصیل بیان شوے دے.

اول به درته په خپلو پښو د لوارۍ په غر د ختلو کیسه اوکړم. دا د ۱۹۸۴ د کال د پشکال موسم وو. په ټوله پختو نخوا او په تېره تېره مالاکنډ ډویژن کښې په شبو شبو بارانونه ورېدل. او زما ملګرے سراج الحق د چترال په طرف روان شو. سراج الحق د ایجوکیشن کالج پېښور پوهنتون د ایم ایډ زده کونکے وو، وروستو بیا د جماعت اسلامي پاکستان امیر هم مقرر کړے شو. په هاغه زماني کښې به په ټوله پختون خوا کښې سرکاري بسونه چلېدل چې ورته به بې جي ټي ایس ویل. د پېښور نه د جي ټي ایس په بس کښې کېناستو. په دغه بسونو کښې د سکول، کالج او پوهنتون هلکانو لپاره نیم ټکټ وو. دغه ټکټونه مو تر لاسه کړل. په پېښور ښار کښې د هشتنغرۍ د جي ټي ایس اډۍ نه چې بس اووتو نو ما کتاب لوستل شورو کړل. عمر له مې دغه عادت دے چې په سفر کښې

کتاب لولوم. سراج الحق چې څنګه سر په سیټ کېښودو نو اوده شو او خر ړارے یې شورو کړو. د بده مرغه په کوم سیټ چې هغه سر کېښود ے وو، هغې کښې اوسپنه راوتې وه، بس په وران ویجاړ سړک درنجېدو او چې درګۍ کښې د غرمې ډوډۍ ته بس اودرېدو نو څه ګورم چې د سراج الحق د تندي نه وینه روانه ده، زر مې نزدے د دوایانو دکان ته بوتلو او پټۍ مې ورله اولګوله. غرمې ډوډۍ نه پس چې بس د درګې بازار نه اوتو او د مالاکنډ غر ته ورسم شو نو د تاریخ اورېدو ته مې فکر لاړو.

د ملاکنډ د غر او د چترال په خپلو کښې اوږدې اړیکې دي. په کال ۱۸۹۵ کښې چې د جندول عمرا خان د چترال شاهي قلعه محاصره کړه نو فرنګي فوځیانو د هغې آزادولو لپاره د پېښور او مردان نه خپل فوځیان د چترال په لور روان کړل. د مالاکنډ، بونېر، سوات، باجوړ، مهمندو او دیر مسلمانانو د فرنګي فوځ لاره د مالاکنډ په غر کښې بنده کړه او تود جنګ اوشو. په دغه جنګ کښې ددواړه فریقو ډېر زیان اوشو خو په پایې کښې فرنګیانو برے تر لاسه کړو. د دغه سیمې خلکو د فرنګیانو چترال ته تلل دومره بد ګڼل چې یوه ټپه نن هم خلکو ته یاده ده چې:

چرته پښتون چرته انګرېز

بې ننګي زور شوه انګرېزان چترال ته ځینه

چترال ته چې ځې نو په بټخېله خو به تېرېږې. ویل کېږي چې دا د پاکستان تر ټولو اوږد بازار دے. زما د کالج زمانه ټوله په ملاکنډ، بټخېله، چکدره او تانه کښې تېره شوے ده. د چکدرۍ په پل چې لاندې ترېنه د سوات سیند بهېږي، چې پورېوځې نو. د کوز دیر علاقه شورو شي، په لاره کښې د چکدرۍ، اوچ، تالاش او تېمرګرۍ بازارونه راځي. د خال سره د بره دیر سیمه شوروشي نو خال، خاګرام، واړۍ، دارووړه او خاص دیر بازارونو کښې لارۍ موټرې تېرېږي.

و سراج الحق چې د بره دير بازار ته اورسېدو نو د پېښور د جي ټي
ن نه کوز شو او همدغه بازار کښې د رېحان کوټ په محله کښې مو د
ل شريک انډيوال اميرالدين سره شپه اوکړه. اميرالدين په دغه ورځو
ي د ګومل پوهنتون ډېره اسماعيل خان په لا کالج کښې سبق ويلو. د
ځان کوټ نه د جي ټي ايس اډې ته لاړوو او د چترال ټکټونه مو تر لاسه
ن. چترال ته چې به د جي ټي ايس کوم بس تلو هغه د پېښور د بسونو نه
وړوکے وو. د پشکال په شرق باران کښې زمونږ بس د چترال په لور
ان شو او چې يو څو کلوميټره لاړو نو د غر نه په سړک رابهيدونکي
ړ کښې سېلاب راغلے وو چې د سړک يوه حصه بې لاهو کړې وه.
ونو، ټرکونو او لارو نه شو کولې چې په دغه سېلابه اوبو کښې په
ان سړک پوربوتلې وي، نو ځکه ټول بسونه او موټرې راواپس شول.
نږ ته بې خپله کرايه واپس کړه.
نې خلک په هغې بسونو کښې واپس دير ته لاړل او يو شمېر کسانو د
رې په غر پياده روان شوو. زۀ او سراج الحق هم په خپلو پښو روان
و. باران ودرېدلے وو خو په کچه غريز سړک ختې ډېرې وي او تلل
ښې ګران وو. خو بيا هم په دوه ګهنټو کښې د لوارې غر سر ته
سېدوو چې ورته لواري ټاپ ويل کېږي.د پشکال مياشت وه، په
انې علاقو کښې سخته ګرمي وه خو د باران او د لوارې د غر د دنګ
ي له کبله بې کچه يخني وه. دغلته يوه زړه کوټه وه چې اوګي ترې
ختل. مونږه چې ورننوتلوو نو يو بوډا بابا پکښې وه او په نغرې بې
ې باندې کړې وه، او خوا کښې ورسره په يوه وړه الماري کښې بسکټ
وو. مونږ بابا ته ويل چې هله زر چاې تياره کړه. دبا با دے کور ودان
، توده توده چاې او بسکټ بې راته په ښيرن مېز کېښودل خو څومره
قه او خوند چې په هغه خوراک کښې وو، داسې ډېر کم ما ليدلے دے،

شاید چې زمونږه سترې والې. ونږه او یخ موسم ددغه ذائقې سبب وو. د مازیګر نه لږ مخکښې مونږه د لوري ټاپ نه مخ په ښکته زیارت طرف ته یو ځل بیاروان شوو. مخ به ښکته مزل د راختلو نه زیات ګران او خطري وو ځکه چې د خویدو خطره وه. مونږه د ے پیاده سفر له څه خاص تیاري نه وه کړې مطلب دا چې نه جوګر بوټان او نه مو په لاس کښې عمصا وه چې په غر کښې ډېر د فائدې ثیزونه وي. ما د بلوچستان جوړې د صابرو ځپلې په پښو کړې وې هغه خو بېخي ددغه مزل لپاره سهي نه وي. یو ځل دوه راوخونیدم خو سراج الحق راټینګ کړم، کور ېې ودان. په لاره کښې د واورې یو لویه ټوټه چې ګلېشئر ورته وائي مو اولیده. ګڼ شمېر فوځیان ورته ولاړ وو. یو کس راته اویل چې بیګا شپه د غه ګلېشئر را خوئیدلے وو او یو فوځي ټرک چې اته کسان پکښې سواره وو ددے لاندې شوې دے. د ګلېشئر وزن په زرګونو منه وو او د پنځلس ګهنټو نه زیات وخت شوے وو چې ټرک ترې د لاندے وو. که د فوځیانو امدادي ډلې د ګلېشئر نه راویستے هم وي نو ډ خلکو د ژوندي پاتې کېدو امکان کم وو. د پاکستان په قطبي سیمو کښې د واورو ورېدو په موسم کښې داسې پېښې ډېرې منځ ته راځي. کله نا کله خو پوره پوره کلي ددې لاندې راشي او ېې کچه ځاني او مالي زیان اورسوي. مونږه چې بیخي لاندې زیارت نومي کلي ته راکوز شوو نو ماښام شوے وو. ډېر سترې وو نو په مخکښې د تلو توان مو نه درلود. د زیارت وړوکے بازار وو، اکثره دکانونه ېې بند وو خو مېوو. شربت او چاې واړه دکانونه خلاص وو. د یو دکان دار نه مو د هوټل تپوس اوکړو، هغه راته اووې چې د وڼې نه پورې غاړه زیارت هوټل دے چرته چې مونږه په کرایه کمرې اغیستې شوو.

په زیارت هوټل کښې ټول ټال دوه کار کونکي وو، یو بوډا بابا چې د پخلي ماهر وو او بل یو شل کلن هلک چې خدمت ېې کولو. بابا راته یوه کمره

ړه چې دوه کټونه وو پکښې. یوه کهړکۍ خو ړ طرف ته خلاصه وه، چې
. ترېنه غر ښکارېدو. خو تياره وه نو صرف توری ونې او ځای په ځای
ړونو کښې تتی رڼاګانی ښکارېدلې. لاندې خوړ بهېدو چې اوبه يې د
وړمی په رڼړا کښې سپينې ځلېدلې او شور يې کولو. د خوړ له اړخه يخه
ه هوا هم کمرې ته راتلله با با وويل چې زۀ درته سپينې ويشېدلې وريژې
و چرګ په يوه ګهنټه کښې تياروم، مونږه ويل سهي ده. مونږه د ماښام او
وستن دواړه مونځونه په يو ځای وکړل، او چې ښه سا صورت شوو نو
ک راله په يو غورې کښې سپينې ويشېدلې وريژې او په يوه ډونګه
ې د چرګ ترکارې راوړه. مونږه توله ورځ پياده مزل کړے وو، نو د لوږې
و غوړ نه ليدو. هاغه شپه چې خوراک ځومره خوند کړے وو داسې خوند
ږوند کښې کمو خوراکونو راکړے دے. د روټۍ نه پس زر تر زره په خوب
ملوو او تر سهاره مو ډېره نه وه بدله کړې.

سهار د مرغو په اوازونو راپاسېدوو، مونځ مو اوکړو، او بيا د
ټل نه لاندې خوړ ته په چکر لاړوو. بره په سړک يو نيم د سامان نه ډک
ـ په زورونو سکيندو په بره روان وو، باقي خاموشي وه، د خوړ نه بره
ر په لمن او مخامخ د سړک په غاړه د غوزانو اوخوبانو د ونو قطارونه
د خوبانو ونې د مېوو نه ډکې وې. د خوړ نه چې واپس هوټل ته
لوو نو بابا راله ناشته تياره کړې وه، ډک چانک چای، او دوه غټې
ې پراټې او ورسره خالص کُچ يې راته په مېز کېښودل او مونږ ورسره
انصاف اوکړو. د ناشتې نه پس بيا پياده چترال طرف ته روان شوو او
ځو کلوميټره پس د شا د طرف نه يو ډاټسن راغے چې ورپکښې مونږه
ش ته او د هغے ځاپې نه په بل ګاډي کښې چترال ته لاړوو.

......***......

# جامونه د زم زم زما په نظر کښې

واجد ودان خلیل

د ادب د نورو صنفونو په شان سفرنامه هم یو ډېر زوړ صنف دے چې په نړیوال ادب کښې ډېر ارزښت لري ، سفر نامه یو دستاویزي حیثیت لري، مورخ او جغرافیه دان د سفرنامو په رڼا کښې د یو ملک یا د یوې سیمې سماجي ، سیاسي ، معاشي او معاشرتي حالت مرتب کوي، پښتو ادب ته سفرنامه ډېره وروستو راغلې ده ، له بده مرغه سفرنامې له هغهٔ توجه ورنه کړے شوه د کومې چې دا صنف حقدار وهٔ، هم دغه وجه ده چې پښتو سفرنامه اوس هم په خړپوسو ده، وخت په وخت لیکوال راپاڅېدلي او خپل قلمي زیار ئې پښتو ادب ته پیښرزو کړے دے، د لیک او تخلیق دا سفر لا ولاړ نهٔ دے، "جامونه د زم زم" د ښاغلي ایاز الله ترکزي سفرنامه ده چې د حج د مقدس سفرحال احوال پکښې بیان شوے دے، د دې کتاب ترون مصنف د خپل مور او پلار په سپڅېلو نومونو کړے دے ، دې سره سره ئې دا قیمتي کتاب نومیالي لیکوال او سفر ګر سید صابر شاه صابر صیب ته په دې لفظونو ډالۍ کړے دے، زهٔ دا خپله سفرنامه د پښتو ژبې نوموړي سفرنامه نګار ، ادیب او شاعر محترم ملګري او استاد صابر شاه صابر ته په ډېره مینه ډالۍ کوم، لوړ نقاد او محقق سمیع الدین ارمان او نوموړي سفرګر محترم سید چراغ حسین شاه پرې ډېر مفصل او ګټور لیکونه کړي دي ، د دې سفر نامې د نوم په حقله ایاز الله ترکزے په خپلو خبرو کښې لیکي چې د دې سفرنامې د لیکلو نه پس ماته د دې د نوم ډېره زیاته ستونزه وه ځکه چې ما نهٔ غوښتل چې د دې نوم دې عام غوندې وي، مثلاً د حج سفر ، د حج سفر نامه یا د پېښور نه تر سعودي عرب وغیره ، ما غوښتل چې نوم یو انفرادیت ولري، دا کار زما د ترهٔ زوے بلال احمد داسې حل کړو چې ماته ئې تقریباً یو درځن نومونه په میسج کښې راولیږل

ې ما پکښې دا نوم "جامونه د زم زم" خوښ کړو، د یو ملک یا علاقې د
ترګو لیدلے حال قلم ته سپارل سفرنامه نۀ ده بلکې ورسره چې خپل
.بات ، احساسات او داخلي کیفیات هم په خوږه ، پسته او زړۀ
ښکونکي انداز کښې بیان شي نو هله ورته د یوې ښۀ او کامیابې فن
ړې سند ورکړے شي، "د حجاز په لور" د حمزه بابا د وړومبي دور هغۀ
میابه سفرنامه ده چې فني او تکنیکي لحاظ سره په هر اړخ مکمله
نرنامه ده ، د دې سفرنامې لوئے صفت دا دے چې مصنف ځائے په ځائے
بل تاثرات وړاندې کړي دي ، چې کوم کېفیات ئې په زړۀ کښې راپورته
ږي دي هغۀ ئې د تعجب او تجسس نه ډکو جذباتو کښې لیکلي دي، د
مزه بابا سره سم او وروستو ګڼو لیکوالو په دې صنف طبع ازمائیلي ده
. په دې تولو کښې صابر شاه صابر صبب هغه نومیالے لیکوال دے چا
ې تر دې دمه اتۀ سفرنامې د پښتو منثور ادب په جولۍ کښې اچولي
ې، د دوئي د ځېنو سفرنامو نومونه دا دي، روځې ته تګ راتګ ، د مرې
مکې ته ، د نورو نوښاریو کښې ، دوه لوئے سفرونه ، د پښتونخوا سبل
سفر ، د لوئے کور سفر او د میدان ښار سفر، پورته ذکر شو وو سفرنامو
مې وړومبۍ درې سفرنامې زما د نظر نه وتې دي ، انداز بیان ئې ساده
برجسته دے ، ژبه ئې پسته او شیرینه ده ، د مزاح چاشني هم لري ،
ړه دا چې دا تولې سفرنامې د اعلیٰ معیار غوره نمونې دي، څنګه چې
غلي ایاز الله ترکزي د خپلې سفرنامې د نوم په انتخاب کښې ډېر زیار
ے دے نو دغسې په لیک کښې ئې هم د ډېر احتیاط نه کار اخستے
ے ، دوئي تر خپله وسه کوشش کړے دے چې د دوئي دا سفرنامه د حج
ورو سفرنامو په شان روایتي انداز کښې ونۀ لیکلے شي بلکه ځان له بیل
ناخت او منفرد مقام اګتې، هم دغه وجه ده چې په ډېره خوږه ، پسته او
م فهمه ژبه ئې هر څۀ بیان کړي دي، تش د سترګو لیدلے حال بیانولو

باندې ئې اکتفا نه ده کړې بلکې د یو محقق انداز ئې خپل کړے دے،
ښاغلے ډاکټر نګاه حسین نګاه د دې سفرنامې پحقله وائي چې "د ایاز الله
ترکزي د سفرنامې انفرادیت دا دے چې مصنف پټ تحقیق کړے دے ، هر
څو که دا معلومات د تاریخ او سیرت په کتابونو کښې شتون لري خو د
سفر نامې په صنف کښې دا هر څۀ بیا ډېر ګټور ثابتېږي ، موصوف د
کتابونو په حواله تاریخي او معاشرتي پټ تحقیق کړے دے کوم چې زما
زړۀ ته پرېوتو او ټوله سفرنامه لوستو باندې ئې مجبور کړم، د ډاکټر صېب
د خبرو په رڼا کښې مونږ دا وئیلے شو چې جامونه د زم زم د جدید دور د
سفرنامې ټول لوازمات او شرطونه پوره کوي بلکې یو ځانګړے اسلوب او
انفرادیت هم لري، چراغ حسین شاه صېب د "درېم حج" د عنوان د لاندې په
خپله سریزه کښې لیکي چې مصنف لوستونکے د لاس نه ونیسي او د
عمرې او د حج ټول ارکان او فرائض د ادا کولو سره ئې ورو ورو مخ په
وړاندې بوځي ، په لاره ورته د ضروري معلوماتو، تفصیلاتو ، احساساتو
او کیفیاتو بیان په ډېره خوږه او اسانه ژبه کوي نو ځکه زه دا وایم چې دا په
عالم تصور زما درېم حج دے، دې حج نامه کښې د بیان رواني ، سلاست
، سادګي ، د ژبې خوږ والے او د معلوماتو فراواني ده ، دغه شان مخکښې
لیکي چې "دې مسوده کښې د سفر نامې ټول لوازمات لکه د سفر حقیقت
نګاري ، د مشاهدې قوت ، منظر کشي ، د معلوماتو زیاتوالے ، جذئیات
نګاري ، د واقعاتو چاڼبین ، تجسس ، د داخلیت او خارجیت ګډون او د
عشق وارفتګي هر څۀ شته"

......***......

# سیف الرحمان سلیم او د هغهٔ غزل

عصمت سوراني

سیف الرحمان سلیم د پښتو ادب هغه ځلنده شخصیت دے چې د
نو د غزل په ارتقاء کښې د هغوي د کردار نه انکار نۀ شي کېدے د
ید غزل په هغه نومورو شاعرانو کښې حسابېږي چې نن هم د هغوي
د خلقو په ذهنونو او زړونو کښې یاد او تازه دے سلیم صېب په
۱۹ء کښې په ګلوزي نوم د کلي د سیدانو په کورنۍ کښې د سېد جلال
ین کره پېدا شۀ ابتدائي تعلیم ئې د خپل کلي په سکول کښې حاصل
خو د ځۀ حالاتو له وجې دا سلسله جاري پاتې نۀ شوه روستو ئې بیا
م جماعت پرائیوټ پاس کړو په 1951ء کښې د خزانې ټهیکدار سره
بهرتي شۀ د نوکرۍ په دوران کښې ځۀ داسې حالات ورته مخې ته
لل چې سلیم خورالس کاله قېد شۀ قېد نه پس ئې وادۀ اوکړو او باقي
ې عمر ئې په کلي کښې تېر کړو چې آخر په اتم مارچ 2007 کښې
ت شۀ د یونیورسټۍ پبلشر له خوا د سلیم د یو غزل په ذغه مصره۔

د وړو وړو خـــدایانو دې بنـــده کـــړم
پـــه نامـــه کتـــاب چـــاپ شـــۀ

نو محقق او نقاد محترم همېش خلیل په خپل کتاب کښې د سلیم په
ه لیکي چې "سلیم د جدیدې شاعرۍ د مکتب هغه فنکار دے چې
ناتي پس منظر انسان دردونه ډېر زورور محسوس کړه سلیم د
دلو، زپېدلو او خپلو حقونو نه د محرومه انسانانو د ماتو زړونو
مان دے هغه د خورانو په ژوند د دنیوي خدایانو له لاسه د ظلم او
خلاف احتجاج هم دے او بغاوت هم، همېش صېب وړاندې لیکي
سلیم یو حساس شاعر دے چې د ذات او د کائنات د ازلي او ابدي

رابطې عرفان هم لري " د جدید دور د حقائقو نه د واقفیت باوجود هغه دا حقیقت هم محسوسوي چې شاعري د سوز د جمالیاتي دربار بهترین حُسن دے د سلیم شاعري د سوزا او خلوص محبت او تغزل بهترین امتیاز دے چې رنګین هم دے او شیرین هم دے هم دا وجه ده چې د سلیم شاعري یعني غزل خوښولے شي نن چې د پښتو غزل کوم معیار دے او یا د ارتقاء په کوم بام ختلے دے لکه د نورو غزل ګو شاعرانو سلیم هم پکښې لویه برخه ده دې کښې هیڅ شک نشته چې سلیم د غل شاعر دے خو هغه نظمونه هم لیکلي دي چې د ترقي پسند سوچ غمازي کوي د سلیم هر یو شعر او غزل د داد وړ دے خو د هغهٔ د شهرت اصل وجه د هغهٔ دا غزل دے چې نن هم په اولس کښې مقبول دے۔

کلـــه نـــا کلـــهٔ ســـت د جـــام کـــوه
پـــه تـــا مئـــبن یـــم پـــه مـــا پـــام کـــوه
ســـلیمه ســـم دې کـــړه غـــزل شـــرعې تـــه
لـــرې پکښـــې ذکـــر د خپـــل قـــام کـــوه

د سلیم غزل په ګڼ اړخیزو موضوعاتو رنګین دے چې د رومان، قام پرستۍ ترقي پسندۍ دا هغه جوهر دي چې د سلیم غزل ته ئې ښکلا او ځلا بخښلې ده اخون زاده فرمان مسافر د سلیم په حقله په خپل کتاب کښې لیکي دي چې "نوموړے د ډیر زورداري شاعرۍ خالق دے په نظم او غزل دواړو کښې ډېر ژور لاس لري د یو حساس او کلک ضمیر څښتن دے شاعري ئې د تخیل د لوړو منزلونو څخه راتېرېږي او په ساده ژبه کښې اظهارِ خیال کوي هم دا وجه ده چې په پښتونخوا کښې د دوي شاعري مقبوله ده وړاندې لیکي چې سلیم د خپل دړېدلي زړهٔ د کېفیتونو ذکر په خپل غزل کښې ډېر په زړهٔ راښکونکي انداز کښې رانغاړي چې قطعي انتها نهٔ لري او دا د دوي د لوړې شاعرۍ علامت دے" محترم

لیم راز صیب چې د سلیم صیب په فن او شخصیت ئې ډیر په تفصیل
ره لیکل کړي دي غواړم چې د هغوي د لیک څۀ برخه هم تاسو سره
ریکه کړم راز صیب لیکلي دي چې "زۀ د سلیم په شاعرۍ او شخصیت
دواړو مئېن یم هم دا وجه ده چې د هغۀ شاعري یو ژوندے فکري بنیاد
ي او په شعري تخلیق کښې ئې مفکرانه ژوروالے او شاعرانه وسعت هم
ه نظر راځي د سلیم په شاعرۍ کښې یعني په غزل کښې مقصدیت دے
د ژوند د پښتو عکاسي ده د هغۀ خپل مشاهدات او تجربات دي او په
ېره تېره د خپل دور خپل عصر نمائندګي ده ځکه د هغۀ شعر او فکر
رقي پسند دے د هغۀ په شاعرۍ کښې د خپل معاشرتي ژوند رېښتونے
عکس دے"

ځنګه چې ما د لیک په سر کښې دا خبره کړې وه چې سلیم خو
نظمونه هم لیکلي دي او غزلې هم کو زما موضوع د هغوي غزل ده نو زۀ
غواړم چې تاسو سره د هغۀ د غزل څو شعرونه شریک کړم هسې کو پکار
وه چې د هغۀ د غزل په هر شعر جدا جدا بحث شوے وے خو بیا هم د
نمونې په توګه تاسو سره د هغوي څۀ شعرونه شریکوم چې تاسو ته به
خپله اندازه اوشي چې د لیم غزل واقعي غزل دے او تر څو چې پښتو
ادب او پښتانۀ ژوندي وي نو د سلیم نوم به هم ژوندے وي په دې لاندې
شعرونو کښې د خپلې تجربې او مشاهدې په اساس د خپل ژوند کېفیات
او حقیقت څۀ داسې وړاندې کوي۔

کله کله د خدا ے دوست شمه خلیل شم
کله کله د نمرود په شان ذلیل شم
کله کله زۀ حاتم شم سخاوت کښې
کله کله د قارونه په شان بخیل شم

د غزل دا نمونه ئې هم اوګورئ۔

د وړو وړو خــــــدایانو دې بنـــــــده کــــړم
لویــــه خـــداه زۀ بـــه چـــا چـــا تـــه ســجده کـــړم
ملګرتیـــا کـــه ځـــو رنــــدان راســــره اوکـــړي
دا حـــرم بـــه یـــوه لویـــه مېکـــــده کــــړم
د وصـــال د شـــپې بـــدل بـــه دې خـــلاص نـــۀ کـــړم
تـــولې شـــپې کـــه د خپــل عمـــر ششـــوګیره کـــړم
شـــــیریني د پېغلتــــوب د پېغلــــې غــــواړم
ځلـــۀ بـــه ســـتا پـــه عنـــابي شـــونډو خـــوږه کـــړم
چې مسکۍ شي لـړ ئـې ښـکل کـړي بیـا ئـې را کـړي
ســـل تـــوبې بـــه هغـــه جـــام نـــه صـــدقه کـــړم
دا وو د سېف الرّحمـان سـلیم د غـزل نمونـه زۀ خپلـې
خبرې د هغوي په دې شعر راټولوم۔
زۀ د ســـر قاتـــل تـــه هـــم پاڅمـــه هـــر کلـے وایـــم
نـــوره مـــې د صـــبر او د زغـــم پوښـــتنه مـــۀ کـــوه

حوالې

کتاب: پښتانۀ لیکوال (اول ټوک) همېش خلیل
کتاب: ځلنده ستوري (اخونزاده فرمان مسافر)
تنقیدي کرښې (سلیم راز) اعراف پرنټرز پېښور
کتاب: د وړو وړو خدایانو دې بنده کړم (سېف الرحمان سلیم)

......***......

# ادب کښې د ابلاغ مسئله

پروفیسر ډاکټر یار محمد مغموم خټک

د ابلاغ لغوي معنٰی رسول ده . اصطلاح کښې خپل معلومات، خیالات احساسات د وینا ، تصویر ، لیک یا د اشارو په ذریعه تربل کس رسولو ته ابلاغ وائي. ادیب د ادبي لیک په ذریعه خپل احساسات او خیالات لوستونکیو ته رسئ. په ادبي تخلیق کښې لفظونه د خیالاتو د ابلاغ اکي یوه ذریعه ده که چرې یو ادیب او شاعر د لفظونو په استعمال کښې د احتیاط نه کار وانخلي او د لفظونو د معنو په فرق غور او نۀ کړي نو هغه د زړۀ خبره تر لوستونکي نۀ شي رسولے.

دا ځکه چې د لفظونو خپله دُنیا وي یو لفظ چې په یو ځاے کښې کومه معنٰی ورکوي ضروري نۀ ده چې په بل ځاے کښې هم هغه معنٰی ورکړي. دا ادیب د پاره د معنو په لحاظ لفظونو ته صحیح ترتیب ورکول ضروري دي د لفظونو صحیح ترتیب او د موقعې مطابق استعمال د خیالاتو په ابلاغ کښې اهم کردار ادا کوي. که چرې یو ادیب یو کثیر المعانی لفظ په داسې موقع استعمال کړي چې د سیاق او سباق له مخه ئې استعمال هلته موزون نۀ وه نو د خیالاتو په ابلاغ کښې مشکل راپیدا شي. ادیب ته پکار دي چې د لفظونو ترمینځه وحدت برقرار وساتي.

د خیالاتو په ابلاغ کښې هغه وخت هم مشکل راپیدا کېږي چې ادیب یا شاعر د زمانې د مزاج برخلاف خوامخوا د هغه متروک او مشکل لفظونه استعمال کړي یا قصداً د پردۍ ژبې هغه ټکي استعمال کړي چې لوستونکي ورسره بلد نۀ وي. او یا دا چې په مختلفو ادبي اصنافو کښې د لفظونو د استعمال په وخت د دغو صنفونو د مزاج او نوعیت خیال او نۀ ساتي.

د نثر په حالت کښې اوږدې جملې هم د خیالاتو په ابلاغ کښې مسئلے پیدا کوي او لکه څنګه چې د جملو جوړولو په وخت د لفظونو حسن ترتیب

په ابلاغ کښې اسانې راولي دغه شان د مختلفو جملو ترمینځه فطري ربط پیدا کول هم د لیکونکي ذمه داري ده که چرې په پیراګراف کښې لیکلی شوې مختلفې جملې د معنې په لحاظ یو وحدت او تاثر قائم نۀ کړي نو لوستونکے وربانديې په آسانه نۀ شي پوهېدے.

د لیک په دوران کښې د لیکونکي Concept واضح پکار دے که چرې یو لیکونکے د خپل لیک په حقله واضحه نظر نۀ لري او په خپل لیک باندې خپل ځان هم نۀ شي پوهولے نو لوستونکے په مشکل کښې واچوي او د انجام یو بدترین صورت راپیدا شي چې ورته ځیني لوستونکي مهمل لیک وائي.

ځیني ادیبان دا عقیده لري چې د هغوي محض د خپل ذوق د تسکین د پاره لیکل کوي هغوي مجبور نۀ دي چې خپل احساسات به خوا مخوا لوستونکیو ته رسوي.

دا نظریه د خیالاتو په منتقل کولو کښې لوے خنډ اچئ ادیب چې هرکله خپلو احساساتو ته د لیک شکل ورکوي نو دې مجبور دې چې پخپل لیک لوستونکي پوه کړي ګنې نو بیا به ادب د تحریک ارتې یو قسم شي د ادیب دا فرض دې چې داسې لیکل وکړي چې لوستونکے ترېنه څه زده کړي او یا ترې څۀ خوشحالي محسوسه کړي. دې به خپل لوستونکے په کشمکش کښې نۀ اچوي او د هغۀ وخت به بې ځایه نۀ خرابوي.

په هر ادبي او فني تخلیق کښې د اظهار د خواهش سره سره د ابلاغ خواهش ضروري دے ادیب ته پکار دي چې د تخلیق په وخت دخپلې خوښې او ناخوښې نه علاوه د لوستونکیو د خوښې او نا خوښې خیال اوساتي دې ته د غیر ضروري ګرانو ټکو تشبیهاتو او علامتونو د استعمال نه ډډه پکار ده.

د ادبي لیک په پوهېدلو کښې مشکل د هغو ادیبانو او شاعرانو د لیک د لوستو په دوران کښې هم راپیدا کېږي چې د وخت نه مخکښې پیدا

د هغوي خیالات او تصورات د عامو لوستونکیو د سطحې نه اوچت
د دوي د لوستونکیو تعداد محدود وي دوي نوے خبره کول غواړي
ستونکیو ته نوے فکر رسول غواړي د دغه نوے خبرې فکر او تخیل د
ه زاړهٔ الفاظ تشبیهات استعارات او علامات د دوي امداد نهٔ شي کولے
ځکه دوي مجبوراً نوے ژبه، مرکبات او علاماتونه استعمالوي.زړو
ظونو او علاماتونو ته نوے رنګ ورکو. ـ پکې نوے معنٰی پیدا کوي
ر لوستونکي د دوي وینا مبهمه ګڼي خو ځهٔ موده پس د غلط ادب غوره
ت شي.

په ادب باندې پوهېدل د لوستونکیو دي نظر ئې هم ګران کړي دي . د
مې ترمخه چې ادیب په ساده او آسان لیک کولو مجبور دے. هغوي دا
ي خیال دے چې لیکونکے دې داسې لیکل کوي چې لوستونکي ته
باندې د پوهېدو دپاره هړو د محنت او کوشش ضرورت محسوس نهٔ شي.
لاتکې خبره داسې نهٔ ده د لوستونکي هم دا غرض دي چې په خان کښې د
طالعې عادت واچوي او لوستل محض د وخت تېري ذریعه او نهٔ ګڼړي
کې دا عقیده اولري چې ادب او شاعري د انسان شعور په ارتقا کښې
ے لاس لري او ځکهورباندې پوهېدو دپاره د وسیعې مطالعې ضرورت
ے

د ابلاغ مسئله هغه وخت هم راپیدا کېږي چې لوستوکي د ادیب پوره
سیاتي مطالعه نهٔ وي کړے هغه د ادیب د استعمالونکیو لفظونو
لامتونو، تشبیهاتو او استعاراتو د مزاج نه نا خبره وي نو ځکه د یو ادیب
لیک د پوهېدو دپاره د هغهٔ پوره نفسیاتي مطالعه ضروري ده.

ځیني ادیبان د خارجي دنیا نه باطني دنیا ته او باطني دنیا نه خارجي
یا ته دانګي را دانګي او ځکه د هغهٔ تخلیق لوستونکي دوجاله کړي کله
ه داسې هم کېږي چې ادیب یا شاعر قصداً پوره خبره نهٔ کوي هغه په خپل

لیک کښې دا اثر پیدا کولو دپاره نیمه خبره وکړي او نوره خبره لوستونې ته پرېږدي چې هغه تر ښه د خپل ذوق او پوهې مطابق نتیجه حاصله کړي. ادیب دغه عمل هم لوستونکي ته مشکلات پیدا کوي په ادب کښې تخلیقي او عملي تجربې او د روایت نه بغاوت هم د ادبي لیک په پوهېدو کښې مشکل پیدا کوي ځکه چې د جدیدیت نه متاثر لیکونکي نوي لفظونه علامتونه او تشبیهات استعمالوي چې وباندې پوهېدل نا ممکن وي.

......***......

# د غني خان د شاعرۍ آفاقیت او حقیقت نګاري

محبوب ګل یاسر

شاعري د الله پاک ورکړه ده. خو بعضې شعرونه داسې وي چې هغه ـ نه پس هم خپل تخلیق کار او لیکوال نه هیروي- ژوندے ئې ساتي- ـسې شاعري په معاشره کښې پاتې کسانو ته فوقیت ورکوي- او د د ټولنیز ژوند برخه ګرځي- کله چې شاعري د یوې ټولنې برخه ـڼي نو هم دغه دوامداره پاتې شي- او خپلې هڅې نورې هم تېزې زمونږه "په تېر هېر شاعرانو" کښې داسې ګڼې نامې مخې ته راځي خوش بختۍ نه هم په دغسې د فن په نازکو کالو معموره او بریالي ـس به راشم د خپلې موضوع په اړخ.

په پښتو ادب کښې د ستر فلسفي غني خان لیونۍ کردار د ـنې ورړ دے- یو خوا که دے د خدائي خدمتګار روحِ روان او باني ـان فخرِ افغان فرزند ارجمند دے- نو بل پلو د دهٔ ذهني تخلیقات او ـنه د افرین جوګه دي- د دهٔ په شاعرۍ کښې اولسي رنګونه، ـ تقاضې، د موسیقۍ آهنګونه او د سیاست انقلابونه شامل دي. په خپله شاعرۍ کښې د علمائے سُو رد کړے دے- او د دې په ضد ـي او اولسي رنګونو ته ترجیح ورکړې ده، د دهٔ د شاعرۍ زغل لکه ـس د منډې په شان دے- کوم چې په سیلۍ، طوفان، ږلۍ او باران ـیو شان روان وي او د خپل مقصد رفتار رالنډوي- د موسیقۍ ـه د غني خان د شاعرۍ یو ځان له اسلوب دے- او هم دغه وجه ده ـهٔ شاعري د موسیقۍ په کالو ګڼو سندرغاړو ښائسته کړې ده- د دهٔ ـ به د خیبر پښتونخوا نه مخکښې د کابل ریډیو نه د ناشناس او علي تکړ په خوږو آوازونو سره غږېږېده- او د دې بوي به د خیبر

پښتونخوا او جنوبي پښتونخوا د پښتنو سماعتونو ته رسېدو- چې ډېر خوږ لرېدو- د غني خان شاعري ډېر په آسانه او ښائسته پښتو کښې شوې ده- او دهٔ به د خپلې شاعرۍ په باره کښې وئیلې چې ما هغه لهجه استعمال کړې ده کومه چې ما د خپل ژوند د وړومبني مکتب (د مور د غېږې) نه زده کړې ده- هم دغه خیال د دهٔ د پښتو د املا په بار کښې هم وهٔ- وئیل به ئې چې ما د خپلې مور د خُلې نه چې د پښتو کوم لفظونه اورېدلې دي دغه زما د پاره صحیح املا ده- او زما په دغه باندې یقین دے-

د غني خان د خپلې شاعرۍ په باره کښې دا قول وهٔ- که ما هر څنګه شاعري په کومو اصولو کښې کړې ده خو ما صرف په پښتو ادب کښې د خپلو تخلیاتو اضافه کړې ده- ما د شاعرۍ د سرحدونو نه بغاوت کړے دے- او خپله شاعري مې هم داسې آزاده پرېښې ده- او پښتو ادب ته آزاد نظم بیا وروستو راغلے دے- جانان، مُلا، واعظ، غېرت، پښتو، زاهد، متقي، مجنون او داسې نور رنګونه د غني خان دشاعرۍ خاصه ده-

که د دهٔ د شاعرۍ په ژبه هر څوک نهٔ رسي نو هغه هم د فلسفي هغه ګرانه لمنه ده- چې یو لوستونکے پرې په آسانه نهٔ شي پوهېدے او په سوچ کښې ورته پرېوځي خو بیا پرې وروستو اورسي- نو څان ورته ملامته ښکاره شي- او د حقیقت په رموزو پوهه شي- دهٔ د پښتون اولس سیاسي، اولسي، اقتصادي، اسلامي او د وحدت په نیمزالي حالاتو باندې هم خپل قلم ګرځولے دے- که یو طرف ته ئې دوي ته د طنز په ژبه کښې سپورې ستغې وئیلې دي- نو بل طرف ته پکښې ئې ورته د حالاتو نه د وتلو لاره هم ښودلې ده- د دهٔ د شاعرۍ محور خالق، کائنات او انسان دے- دهٔ که یو طرف ته په خپله شاعرۍ کښې د پښتنو د خوي بوي، د هغوي د عادتونو کولاؤ اظهار کړے دے نو بل طرف ته ئې دوي د نورو

ونو د اوچتوالي او بام عروج ته د رسېدو هڅې هم په ګوته کړې دي.
ال او جلال د دوي د چوکاټ نه بهر نۀ دي پاتې شوي او د دې نه ئې
ده اوچته کړې ده. که په عالمي تناظر کښې د غني خان د شاعرۍ مقابله
رو شاعرانو سره وکړي نو په دې حقیقت به یو انسان پوهه شي چې دې
ر اروابناد څومره ذهني ارتقاء او فوقیت لرلو. ځکه چې غني خان په
انه او مستانه انداز کښې عمر خیام، جمالیاتي اظهارِ خیال کښې د
تهس او په مفکرانه اظهارِ خیال کښې د علامه محمد اقبال سره شریک
ے شوے دے. د دۀ د ارتقاء مارغۀ ډېر اوچت پرواز کړ دے. لکه یو
ے کښې وائي:

خـوب ویـنم عالمـه کـه ئـې څـوک راکـړي معنـی
پـروت یـم سـر مـې ایښـے د خپـل یـار پـه زنګانـۀ

که مونږه د لېوني فلسفې په حقیقت نګارۍ یو سر سري نظر
اچوو. نو مونږه ته به دا واضح شي. چې دۀ په خپل عملي ژوند کښې هم
قیقي پوړۍ سر کړې ده. ولې د غېر عملۍ نه ئې ډډه کړې ده. لېوني
لسفې سره به چې څوک هم ملاوېدل نو په غېر یقیني کېفیت سره به دا
ر څۀ کېدل. ځکه چې په جار به ئې وئیل کوم شے چې تۀ د الله پاک نه نۀ
ې پټولے نو د یو انسان نه ئې د پټولو هم څۀ حاجت نشته. د باطن او
اهر ژبه ئې یوه وه. زما په خیال د ډاکټر علامه محمد اقبال او د غني
ان مفکرانه انداز یو بل ته څۀ ډېر نزدې نزدې ښکاري. او هغه ځکه چې
ه لاندیني شعرونو کښې د دواړو د یو ذهن عکاسي ضرور ښکاري. لکه
لامه محمد اقبال په "بانګِ روا" کښې وائي



Scanned by CamScanner

خدا سے حُسن نے اک روز یہ سوال کیا
جہاں میں کیوں نہ مجھے تو نے لا زوال کیا
ملا جواب کہ تصویر خانہ ہے دنیا
شب دراز عدم کا فسانہ ہے دنیا
ہوئی ہے رنگ تغیر سے جب نمود اس کی
وہی حسین ہے حقیقت زوال ہے جس کی
کہیں قریب تھا، یہ گفتگو قمر نے سنی

بل خوا غني خان "د غني کلیات" کښې وائي:

ستوري تــه آســمان کښــې يــوه ورځ ووې هــلال
خــدا ے آدم لــه مينــه ورکــړه مــونږ لــه تــش جمــال
زۀ بــه پــه خنــدا ورکــوم دا خپــل ښـشــت د کمــال
مــا لــه کــه يــو څــاڅکې مينــه راکړي څــوک پــه ســوال
مينـــه حقيقـــت حُســـن ســـايه د حقيقـــت ده
حُســـن لـــه زوال شـــته مينـــه نـــۀ لـــري زوال

......***......

# دسعدالله جان برق برقيات

مصور قریشي

دې معاشره کښې رښتيا وئيل اؤ زغمل ډير لوئي زړهٔ غواړي اؤ دا د هر
د وس خبره هم نهٔ ده ځکه چې رښتيا وئيل ډير تراخهٔ وي اؤ بيا د دې
ل د دې نه هم زيات تراخه وي. خو حقيقت دا دے چې زمونږ معاشره د
قت نه ډکه ده مخ، مخ اؤ شا ، شا وي دلته که ليکوال دے هاغه هم مخ
له کوي اؤکه سياستمدار دے هاغه هم دمنافقت نه کار اخلي ياري
تي هم د راکړې اؤ ورکړې ده ډيرکم خلق به وي چې هغوي به سپين ته
ن اؤ تور ته تور وائي ګڼي دا خو هرچاته پته ده چې د زورورو اوبهٔ به بره
اؤ د غريب ملا ماتوي.

ماخه موده وړاندې يوه سلسله (زاړهٔ يادونه ډير خوندور وي) به ورځپانه
ت کښې شروع کړې وه دا زما ياداشتونه يا ډائري ده لس دولس برخي
مې وليکلې چا پ شوې خلقو ډيرې خوښې کړې خو د مجبورۍ نه مې
ې کړې ځکه چې نورې برخې که ما ليکلې نو په دغه ياداشتونو کښې
ې يادونه هم وو چې ډير نومورې به رانه خفه کيدل اؤ مانهٔ غوښتل چې
ے خفه کړم ځکه چې سعدالله جان برق خو نهٔ يم چې جو کچھ کهون گا
کهون گا، سچے کے سوا ...... وليکم اؤ که رښتيا راباندې وايې نو د
غو مزے هم لنډ وي اؤ دا فارموله هرچاله نهٔ ورځي ، يره ماله خو بلکل
اخي ګڼې تاسو امجدعلي خادم له قسم ورکړئ هغه به درته رښتيا
يا ووائي.

برق صيب اردو کښې يو کتاب يادوں کے جنازے اوس اوس چاپ کړے
چا چې لوستے هغوي ته پته ده چې څه رنګه کتاب دے، اؤ د چا چا نه
ې ويستي دي لوستو سره تعلق لرې ډيرمعلوماتي اؤ خوندور دے

ډیروباندې ئې خوبونه حرام کړیدي ډیروته ئې ائینه ښودلې اؤ هرڅوک ائینه کښې خپل مخ نۀ شي لیدے ځکه چې ځینې مخونه ډیر بدرنګ وي اؤ څوک هم ځان ته بدرنګه نۀ وائي اګر که بدرنګ هم وي.

یقیناً چې په دې کتاب کښې چې څه دي د ډیرو سره اختلاف هم کیدے شي اؤ ډیر داسې مواد پکښې هم شته چې هاغه په حقیقت پسندئ اډانه دي.

سعدالله جان برق یو داسې شخصیت دے چې هاغه زیاتره پښتانۀ پیژني هغوي که دلیک سره تعلق لري اؤ که نا ځکه چې هغه نه یوازې یو کالمسټ دے بلکې یو ښۀ طنزیه اؤ سنجیده ډرامه نګار دے اؤ پي ټي وي باندې ئې ډیرې مشهورې مزاحیه ډرامې نشرشویدي د هغه هریو لیک که اردو وي که پښتو دلوستو سره تعلق لري چرته ئې هم چاسره په لیک کښې کمپرومائز نۀ دے کړے هاغه چې څه ویني اؤ ګوري هغه لیکي د چا مخ ملاظه نه کوي اؤ نۀ په چا پرده اچوي بلکې په ځان هم پرده نۀ اچوي چې څه دے هاغه ئې لیکلي نو یو تن چې خپل ځان نه معاف کوي هغه به بل څه معاف کړي؟

یادون کے جنازے ، کښې ئې ډیر زیات رښتیا وئیلي خو څه پکښې ماته دروغ هم ښکاري کیدے شي چې ماته چې کوم دروغ ښکاري هغه رښتیا اؤ په حقیقت اډانه وي ځکه چې برق ټول عمر رښتیا بلکې سپینې سپینې وئیلي دي اؤ کوم چې رښتیا وي هغه دروغ وي د ډیرو خلقو بدې هم شي اؤ په ښۀ سترګه ورته نۀ ګوري. ځینې ځینې خو ئې بلکل دسترګو ازغے ګڼي اؤ ګڼي به ئې ځکه چې ددۀ څۀ کار دے چې دهر چا په کار کښې کار لري هلکه غریب سړے ئې په ارامه کیښنه.

یاداشتونه ډیرکم لیکوالان لیکي چې دغه ډائرئ یا یاداشتونه څه خوارۀ وي خو زیاتره پکښې تراخۀ هم وي اؤ بیا چې په داسې عمر کښې په

عمر کښې چې برق صیب د ے دا یادشتونه لیکل اؤ چاپ کول ډیر لوئې
غواړي اکثر په داسې عمر کښې خلق خپل دوستان زیاتوي نه چې
ښانان، خو نۀ پوهیږم چې برق صیب باندې داسې کوم هاتهي پښه
ودې وه چې دا سپینې سپینې ئې ولیکلې اؤ ځان له ، نۀ ربښتیا خلقو له
کار وکتلو.
په دې کتاب کښې دپروف غلطۍ هم ډیرې زیاتې دي دا هم لکه چې
بنږ د ملګري روح الله جان محمدزي په شان چاپ پروف کړے د ے اؤ
ځان ئې ترې خلاص کړے د ے اؤ بس لته ئې ورکړیده بله دا چې قیمت
هم اګر چې اوس کم کړے د ے ، دولس سوه روپۍ د ے خو په کتاب اوس
۳۵۰۰ روپۍ لیکلې شوے د ے
د یوې سندرغاړې په حقله ئې چې څه لیکلي نو ډیرې دحیرانتیا خبرې
کړیدي دغه غریبه خو ئې بیخي خرابه کړیده حالانکې اوس چې په کوم
کښې ده پکار وه چې معاف کړے ئې وے. دغه لیک چې د دې سندر
ي مینه والو لوستے وي اوس به دهغوي د ماضي د کردار په وجه د هغې
فرت کوي خکه چې د هغې دماضۍ چې کوم تصویر برق صیب وړاندې
ے د ے ډیر خطرناک اؤ دنفرت د ے خو د فلم ډرامې اؤ دشوبز سره تعلق
کو سندرغاړو یا اداکارانو ژوند عموماً د داسې واقعاتو نه ډک وي دا د
ې د ژوند یوه حصه وي.
هم دغه نوموړې اداکاران ، سندر غاړي وغیره چې کله ځوانان وي نو په
نورو سر وي خو ولې کله چې دعمر په اخري حصه شي نو بیا ئې څوک
س هم نۀ کوي اؤ بیا زمونږ یوه دانشوره ډله د دوي مدحې وائي چې
کے فنکار، اداکار، دغربت د وجې مړ شو یا ئې کور نشته په کرایه
ي وغیره وغیره، دا قسمه خبرونه هره ورځ په اخبارونو کښې راځي.
که چرې دغه اداکاران ، فنکاران یا شوبز سره تعلق لرونکي په ځوانه

خواني. کبنې کبر حريص او لالچ پرېږدي په صحيح معنو د خپل فن حق ادا کوي نو يقين وکړئ چې په اخري عمر کبنې به ئې هم ډير عزت او احترام وي او دغربت نه به هم لرې وي خو ولې د دوي نشه دليدو وي بحر حال په دې کتاب کبنې نورې هم ډيرې قيصې قطارې شته چې برق صيب ليکلي دي.

د شمس الزمان شمس باره کبنې چې کومې خبرې دوي کړي دي دې سره خو زۀ بلکل اتفاق نۀ کوم ځکه چې که برق صيب ورله غزلې ليکلي دي نو ټول کتاب خو ئې ورله نۀ دے ليکلے. دا کتاب ورله چا ليکلے دے؟؟ بله دا چې تراوسه برق صيب ولې په دې حقله غلے ؤ؟؟ د شمس الزمان شمس صيب په ژوند ولې برق صيب دا دعوه نۀ کوله چې شمس له ټوله شاعري ما کړيده؟

ځکه چې اوس هغه مړ دے ژوندے نۀ دے چې برق صيب ته جواب ورکړي، دغه ځان له يو سوال دے زما په خيال برق صيب ته داسې نۀ وو کول پکار د مړ سړي پرده اخستل نۀ وي پکار. خو ولې په دې کبنې هيڅ شک نشته چې برق صيب هر فن مولا دے چې ډير زيات قابل دے په هره حواله ليک کول ورته هيڅ مشکل نۀ دي.

تاسو ددۀ دقابليت اندازه د دوي دکتابونو نه لګولے شئ چې د ځلويښتونه زيات کتابونه ئې ليکلي دي او هر کتاب ئې دحوالې په توګه وړاندې کيدے شي لکه د خينو خينو ئې هسې بوس نۀ دي باد کړي. د سياست په حواله او دخينو تش په نوم د دانشورانو دمخونو نه ئې پردې پورته کړي دي او د هغوي د ژوند او ليک په حواله ئې هم ډير ښکلي معلوماتي ليکونه شامل کړيدي. په دې کتاب کبنې ځنې ځنې کالمونه يا مضمونونه داسې دي چې د دې خو دسره ضرورت نه ؤ خو دکتاب دحجم يا غټ والي لپاره ئې پکبنې ځائے ورکړے دے.

د ځان متعلق چې ئې کوم څه ليکلي دي هغه هم د ستائنې وړ دي چې د

.ي تعليم څومره دے؟ ژوند ئې څه رنګه تير کړے دے؟ اؤ دکوم خاندان
ِ تعلق لري؟

زمونږ زياتره ليکوالان د خپل خان متعلق خبرې اؤ معلومات پټوي اؤ په
پل قام قبيله اؤ غربت شرميږي، خو ولې برق صيب دا هر څه خپلو مينه
لو ته په ډاګه کړي دي اؤ کتابي شکل کښې ئې محفوظ کړي دي. دکتاب
يمه برخه ئې هم تر ډيره ليکلې ګورو چې هغې کښې به ئې څه څه اؤ څوک
ِک ياد کړي وي خو دوي ته پکار دي چې دا دويمه برخه په کوم قابل سړي
ُوري اؤ دپروف غلطۍ لکه د دې اولنۍ برخې په شان پکښې پرې نۀ ږدي.

......***......

# تیت پرک او بدائع

طلبګار خوړیانی

خبرې خو هر څوک کوي تقریرونه خو ډېر خلق کوي، نظم او نثر خو هر شاعر او ادیب لیکي، خو دَ بعضو په وېنا کښې څۀ اثر، زړۀ راښکون او خوند نۀ وي اورېدونکے او لوستونکے ئې په اورېدو او لوستو پښېمانه شي خو ولې دَ بعضې خلقو په خبرو او لیک کښې دومره اثر، خوند او شګفتګي وي چې اورېدونکے او لوستونکے ئې دا خواهش لري چې دا سلسله دې هم داسې دراز وي۔ د دې وجه دا ده چې اول الذکر د ژبې په باریکیو، د صرف ونحو په قواعدو او د فصاحت او بلاغت په اصولو نۀ پوهېږي نو ځکه ئې په کلام کښې خوند، رنګ او مزه نۀ وي۔ د آخرالذکر په خبرو او په لیک کښې ځکه شګفتګي، دلچسپي او زورور اثر وي چې دا ښاغلے دَ ژبې په فن، د صرف ونحو په قواعدو او د فصاحت او بلاغت په اصولو مکمل قدرت لري۔

په کلام کښې د ښائست او په معنيٰ کښې د زور پېدا کولو د پاره د معنې، بیان او بدیع د اصولو قواعدو او علم زده کول بې حده ضروري دي۔ ګني نو بیا به "هندو ستړے او خدائے ناراضه" په مصداق د بنده محنت لا حاصل وي۔ دلته زۀ د خپل لیک د عنوان د قېد له مخه په معنيٰ او بیان د بحث کولو نه ډډه کوم په بدیع به د خپلې ناقصه پوهې مطابق لنډ شان بحث وکړم۔

بدائع اسم جمع دے او بدیع ئې واحد دے، د بدائع مترادف تورے صنائع عموماً دې سره یو ځائے وائیلې شي او مرکب عطفي صنائع و بدائع ترکیب جوړوي، صنائع د جمعې تورے دے او صنعت ئې واحد تورے دے۔

د بدائع لغوي معنيٰ ده نوے او عجیب و غریب شے او صنائع معنيٰ
ر او کاریګري۔ په اصطلاح کښې بدیع هغه علم ته وائي په کوم علم
: کلام ښائست او خوبي معلومولے شي او صنائع هغه علم دے د کوم
یعه چې په کلام کښې ښائست او ښکلا پېدا کولے شي د صنائع او
ِ مثال دَ هغې مشاطې (نایني ) دے کومه چې د ناوې سر ځنه کوي،
ۀ او دنداسه ورته کوي، ښائسته او ښکلے لباس وراغوندي، غېر
لي ډول او سنګار ورته کوي، هم دغه شان صنائع او بدائع د کلام
و سینګار کوي په کلام کښې حُسن او ښکلا پېدا کوي۔
په لغت کښې نوي څیز ته وئیلے شي او په اصطلاح کښې هغه علم ته
چې د کلام د ښائست او په نوي طرز دَ وېنا طریقې ورباندې
ښېږي[14]

ع وہ علم ہے جس سے کلام فصیح و بلیغ کی لفظی اور معنوی خوبیاں معلوم ہو جائیں علم بدیع کے
کلام میں خوبصورتی اور دل آویزی پیدا کی جاتی ہے کلام میں دلکشی اور رنگینی پیدا کرنے کے
طریقوں کو صنائع (صنعت کی جمع) کہتے ہیں صنائع کے ساتھ بدائع (بدیع یعنی انوکھی نادر چیز)
ا بولا جاتا ہے[15]

ائع و بدائع دوه قسمونه دي يو ته صنائع لفظي او بل ته صنائع
ي وائي زما په ذهن کښې چې صنائع و بدائع کوم مفهوم او معنيٰ
ه د دې په اهمت ضرورت، وضاحت او حقیقت ما تر خپله وسه بحث
امید دے چې تاسو به اوس د دې په اهمت او ضرورت پوهه شوي

---

۱۴. 98، روح ادب ، سید تسنیم الحق کاک خیل، دویم چاپ کال 1987، ناشر پښتو اکېډیمي پېښور
،

۱۵. 271، فن شعر و شاعري اور روح بلاغت ، پروفیسر حمید الله شاه هاشمي، ناشر مکتبه دانیال لاهور

راځئ چې اوس د ابراهیم رومان صېب په شعري مجموعه "تیت پرک" کښې د صنائع لفظي او معنوي مرقعې ولټوو۔

تیت پرک د ابراهیم رومان صېب ړومبی شعري مجموعه ده خو ولې ابراهیم رومان ډېر زوړ شاعر دے۔ د تخلیق ټولې مرحلې ئې وار په وار سر کړي دي۔ د تخلیقي فن په اصولو پوهه دے۔ با معنيٰ نظم او نثر لیکي۔ خو زۀ د تیت پرک په موضوعاتو، روزمره او محاوره، فصاحت او بلاغت او په علم بیان خبره نۀ کوم ځکه چې زما موضوع صرف لفظي او معنوي صنائع ده، او د صنائع معنيٰ هغه سر ځنه، هغه زېورات، هغه سرخي پوډر او هغه لباس ده کوم چې د یوې ناوې حسن ته زرۀ راښکون، رنګیني او ښکلا بخښي۔

لکه څنګه چې ما مخکښې عرض کړے وۀ چې د بدیع دوه قسمونه دي لفظي ښائست او معنوي ښائست۔

(i)لفظي صنائع یا لفظي ښائست په شعر یا کلام کښې د موزون، ملائم، رنګین او متلازمو الفاظو انتخاب او حُسن ترتیب ته وئیلے شي، یعني چې شاعر یا ادیب خپل قاري ته د خپل پېغام دَ رسولو د پاره د داسې الفاظو انتخاب وکړي چې هغه رنګین وي او د دۀ دَ پېغام قاري په پوهېدلو کښې د کېمیاګر کردار ادا کړي، دې ته لفظي ښائست وائي۔ د دې ډېر قسمونه دي۔

"یعني هغه صنعتونه چې د شعر یا د نثر صرف د الفاظو سره تعلق لریم د الفاظو د جوړښت، د یو بل سره تعلق او د یو بل سره مناسبت په وجه په کلام کښې ډېر خوند پېدا کېدے شي داسې قسم ښائست پېدا کولو ته لفظي صنائع وئیلے شي۔[16]

---

[16] صفحه 118، روح ادب، سید تسنیم الحق کاکا خېل، دویم چاپ 1987،

صنعتِ ذوالقافیتېن: کله چې شاعر په یو غزل کښې د مطلعې نه تر
طلعې پورې دوه غېرګې قافیې استعمال کړي نو دې ته ذوالقافیتېن
ي رومان صېب دا صنعت په یو څو غزلو کښې استعمال کړے دے
مثال ئې دا دے۔

چــې د زړهٔ راتــــه بنـــد اوســـاتهٔ اشــــنا ور
لټومـــه بـــه اوس چرتـــه ګ‍ـ ـــې د چـــا در
هغـــه روڼ محفـــل کښـــې ناســـت د ثریـــا یـــم
چرتـــه چرتـــه چـــې ســـوزېږي د همـــا پـــر

ې غېر مردف غزل کښې ور، در او پر قافیې دي خو د دې قافیې نه
کښې د اشنا چا او د هما د قافیو راوړلو التزام شوے دے دې ته
ت ذو القافیتېن وائي۔

ې صنعت څو نورې نمونې هم د دې کتاب نه وړاندې کوم۔ .

که شبنم ګلزار کښې نغښتې کلۍ ګل کړې
تا پسې مې نم د سترګو ککۍ ګل کړې

د پښتون نسل کشي هغسې کېږي
لکه څنګه چې تس نس هستۍ مغل کړې

غزل په هم دغې صنعت کښې۔

زهٔ اداګـــانو د نظـــر يوړمـــه بـــاد خـــور کـــړم
کـــهٔ نـــه ځـــپلے رويـــو يـــم د تضـــاد شـــور کـــړم

و القافیتېن مع الحاجب یا حاجب ردیف:- دا هغه صنعت دے چې د
قافیو په مینځ کښې د اصل ردیف نه علاوه، یو بل ردیف پکاروله
لکه یه دې شعرونو کښې۔

اے د دې دور هلکنـــه زۀ د هغـــه وخـــت ســـړے یـــم
پښـــتونخوا چـــې پښـــتونخوا وه د دربـــار او حصـــار میـــنځ کښـــې

چـــې نســـکور بـــوټي پراتـــۀ دي او تـــالان تـــالان نعـــرې دي
تفـــاوت دے پیـــدا شـــوے د ګلـــزار او غمخـــوار میـــنځ کښـــې

په دې غزل کښې "مینځ کښې" اصل ردیف دے دربار او حصار، ګلزار او غمخوار دوه غبرګې قافیې دي خو د دواړو قافیو تر مینځ "او" بطور ردیف راغلے دے، دې ته ذوالقافیتېن مع الحاجب وائي۔
د دې صنعت د یو څو غزلو مطلعې ستاسو د وړاندې کوم، کوم چې په تیت پرک کښې دي۔

دا ویـــر مـــاتم چـــې کـــور پـــه کـــور راخـــور دے
زمـــا عمـــل دے لـــور پـــه لـــور راخـــور دے

جـــوړونکے د روان ژونـــد چـــې تقـــدیر دے کـــه تـــدبیر دے
چـــې غـــرور پـــرې اوبـــۀ کېـــږي دغـــه ویـــر دے کـــه بهیـــر دے

عقلـــه چـــې تـــوان واخلـــم دوران واخلـــم
کـــه نـــه مکـــان واخلـــم زمـــان واخلـــم

زمـــا پـــه زړۀ کښـــې تلوســـې ســـتا د مـــودو پرتـــې دي
ګرانـــه نیمګـــړې څـــو وعـــدې ســـتا د راتلـــو پرتـــې دي

۳۔ صنعت سجع:۔ په شعر کښې هم قافیه او هم اواز لفظونو راوړولو ته صنعت سجع وائي:
"په لغت کښې د قمرۍ موزون او هم آهنګ ښکلي اواز ته وئیلے شي او په

طلاح کښې دې ته وائي چې د بېت یا فقرو کلمات به خپلو کښې هم
ن هم قافیه یا په تعداد د حروفو کښې سره برابر وي او په دې وجه په
نا کښې یو خاص اهنګ پېدا کوي" [17]

:ې ډېر قسمونه دي خو رومان صېب چې د کوم قسم استعمال کړے
ے، دې ته تشطیر وائي چې په شعر کښې، په یوه مصرع کښې د یوې
جعې لفظونه او په بله مصرع کښې د بلې سجعې لفظونه راوړلے شي،
ال ئې دا لاندې شعر دے۔

نـــــاز پـــــــروره، معتبـــــره، بحـــــــروره، دُرګــــــوهره
مینـــه ناکـــه، لمـــن پاکـــه، خـــوش پوشـــاکه، عالیشـــانه

دې شعر کښې په اوله مصرع کښې د یوې سجعې او په دویمه مصرع
ې د بلې سجعې لفظونه راوړلے شوي دي۔

صنعت تجنیس:- په شعر کښې دوه یا د دوو نه زیات داسې الفاظ
.ړل چې په تلفظ، وزن او حرفونو کښې یو شان وي خو معناګانې ئې
ا جدا وي، تجنیس وئیلے شي، د دې ډېر قسمونه دي۔

تجنیس زائد:-دا دَ تجنیس هغه قسم دے چې کله په شعر کښې دوه
داسې لفطونه استعمال شي چې په حرکاتو او په حروفو کښې یو شان
وي خو په یو لفظ کښې د بل لفظ په مقابله کښې یو حرف زیات وي دا
حرف د لفظ په شروع، مېنځ او اخره هر ځاې کښې کېدے شي۔

ب دو ایسے لفظ آئیں جن میں سے ایک میں دوسرے کی نسبت ایک حرف شروع یا آخر یا درمیان
زائد ہو جیسے زور، زر، کوہ، شکوہ، بات اور نبات" [18]

یت پرے نه مثال دا دے۔

---

صفحه 118، روح ادب، سید تسنیم الحق کاکا خېل، چاپ دویم خل

صفحه 290، فن، شعروشاعري اور روح بلاغت، پروفیسر حمید الله شاه هاشمي

تېرومـه ژونـدون هسـې د اقـرار او انکـار مېـنځ کښـې
مېنـې سـوے لـوغړن کـړم بـس د دار او دیـدار مېـنځ کښـې

په دې شعر کښې دار او دیدار دوه لفظونه دي د دار په مقابله کښې په دیدار کښې په شروع کښې دوه حرفونه زیات دي۔

(ب) صنعت تنجنیس تام :- په دې صنعت کښې دوه داسې لفظونه راوړلے شي چې په تعداد د حرفونو، په ترتیب د حرفونو او په حرکاتو او سکناتو سره مماثلث لري او معنوي لحاظ سره متفق نهٔ دي[19]

کـه شـبنم گلـزار کښـې نغښـتې کلـۍ گـل کـړې
تـا پسـې مـې نـم د سـترګو ککـۍ گـل کـړې

تـورې زلفـې پـه سـپین مـخ جانـان خـورې کـړې
لکـه شـمعې د محفـل چـې سـیلۍ گـل کـړې

لکه په دې مطلع او شعر کښې یو گل د گلاب یا بل قسمه بوټي گل په معنيٰ دے، بل گل د سترګې گل کېدل دي او دریم د شمعې گل کېدل دي داسې دا یو گل په دریو معنو راغلے دے چې دې ته صنعت تجنیس تام وائي۔

۵- صنعت تلمیح:- چې کله په شعر کښې تاریخي او مشهورې واقعې ته اشاره وشي نو دې ته صنعت تلمیح وائي لکه رومان صېب چې کړې ده۔

منصـور تـرې پـه دار خـلاص نـهٔ شـو مجنـون پـه سـنگبارۍ
دربـان مـې د یـار در کښـې بـه کوتـک وهـي او ځـي

یا

[19] صفحه 132، بحر الادب، شېر شاه ترخوي، چاپ کال 2005،

بیـــا چــې د حـــق چغـــه حُســـېن□ وویســـته
ځکـــه کـــربلا نـــوې قصـــې کـــوي

په اول شعر کښې د حسېن ابن منصور حلاج په دار کېدو او د مجنون د سنګبارۍ واقعې ته اشاره شوې ده او په دویم شعر کښې د کربلا واقعې ته اشاره شوې ده۔

دغه شان د صنعت تلمیح نور اشعار او نورې نمونې دَ تیت پرک نه ستاسو د وړاندې ږدم۔

کلـــه پوهـــه چـــې بالغـــه شـــي ســـینګار شـــي
پـــه ځـــان نـــوم د لقمـــان کېـــږدي یـــا بهلـــول شـــي

د پښتون نسل کشي هغسې کېږي
لکه څنګه چي تس نس هستۍ مغل کړې

زهٔ د ګنـــــدهارا د تهـــــذیب امـــــین یـــــم
نـــهٔ د شـــب خـــون نـــهٔ د ناتـــار پـــه هیلـــه
حالـــتِ ســـکر کښـــې پـــه خُلـــهٔ انـــا الحـــق
دا لېـــونے وهٔ څـــوک د دار پـــه هیلـــه

چې په کښې برېښي د ملوک بدرۍ د مینې داستان
راغلم راتېر شوم نن په هغه مقامونو باندې

وخت علامات راته رابنائي د مهدي د ظهور
غږے که ما د دې لښکر کړې اخر زرهٔ دے کنه

چې خلوص د سره نهٔ وي او جانان مې د هر چا وي
ده توبه په نصوحا مې چرته لرې تتوب غواړم

غلام ښهٔ یمه رومانه خو د زېد رنګ کښې چې رنګ شم
په مرسته کښې د غېرو څو کهٔ لوئې وي ورک دې شان شي

لګـــود زېزمـــو کښـــې ښـــکلا زیـــاتوي
دا د دلـــدار ګرهـــنی کجـــل مسلســـل

چې دی مینه په نصیب شود ژوند کښې خوند راغې رومانه
اوس نعرد د اناالحق کړد منصور وګوره چې میر دے

زمونږه دور فاروقي خو نهٔ دے
د تیوک بودېی غم به نهر سره وي

درخو اوس هم سنګار ناسته . شیرینی د طمعې ژوند کړي
که آدم او مومن نهٔ شُو. مینه لاړه بې نوا شوه

تر پرونه د دنیا غم وهٔ څپلے
نن هغې سرور[20] ته ګوره اروانباد دے

دَ ابدالي او د شېر شاه نه ناخبره ګرانه
تاریخ کښې وګوره قیصې ستا د پښتو پرتې دي

[20] اروانباد سرور لالا ډېر ښهٔ شاعر او دَ ادبي ملګري ارباب لنډی پېښور فعال غړے وهٔ

دلته قاضي[21] هم انصاف ونهٔ موندهٔ
مونږ خو خپلواکه روڼ سبا ته کتل

عشقه! جنون بسې ژوندون په منډه
چا کړلې هېرې د درخو خبرې

بیا چې د حق چغه حُسینؑ وویستهٔ
ځکه کربلا نوې قیصې کوي

مجنون ترقي وکړه حال ئې وګوره بدل شهٔ
محل شهٔ ښائسته د بیابان په بدله کښې
پوهه په چړ چقو چې به بام د ارسطو شوه
کړله سکندر ګټه د زیان په بدله کښې

یا دا لاندې شعر

زما هېڅ روزنه نشته ارسطو راله پکار دے
کم په څهٔ له سکندر یم خو افسوس چې غمخوار نشته

۶۔ صنعت تربیج:- کله چې په شعر کښې د مختلف رنګونو ذکر وشي نو دې ته صنعت تدبیج وائي د تیت پرک نه ئې مثال دا دے۔

د شین اسمان وریځې شنګه تورې تورې شولې
چا راته وې چې اوس لوګے له پورې غرهٔ نهٔ ځي

په دې شعر کښې د شین او تور رنګ ذکر شوے دے۔

[21] چیف جسټس افتخار چودهري ته اشاره

۷- صنعت براعة الطلب:- په شعر کښې یو څیز په داسې انداز غوښتل چې په ظاهره د چا نه څۀ غوښتل نۀ ښکاري خو په حقیقت کښې د څۀ څیز غوښتنه پکښې شوې وي۔

دا دَ جانان په ما پېرزو وګوره
پروت په رخسار ئې دے اوربل مسلسل

د جانان په رخسار مسلسل اوربل خو پروت دے چې د نقاب په شان د جانان مخ د شاعر نه همېشه پټ ساتي۔ شاعر د طنز په انداز کښې وائي چې د جانان په ما دا پېرزو وګورئ چې د اوربل په ذریعه زما نه خپل مخ پټ ساتي۔ د شاعر غوښتنه دا ده چې د رخسار نه اوربل لرې کړه چې زما مئین زړۀ دیدن وکړي۔ په ظاهره په دې شعر کښې غوښتنه نۀ ده شوې خو د شاعر مدعا دا ده چې اوربل د مخ نه لرې کړه۔

۸- صنعت قلب مستوي:- په کلام کښې داسې لفظونه راوړل چې د دواړه طرفه یو رنګ لوستلے شي لکه نادان، تبت وغېره۔

چې د دید په قدر پوه شي د حجاب وجود بې کار شي
پېرزوګانې شي بېداري د عشق څۀ ښکلے تعبیر دے

همدمه مۀ پښته زما زړۀ چودون
مړه پرېږده دا د ازل قصه ده

په اول شعر کښې دید چې سیدها او اپوټه دواړه رنګ یو شان لوستے شي او په دویم شعر کښې همدمه چې د دواړه اړخه یو شان لوستے شي۔

۹- صنعت اشتقاق:- په کلام کښې دوه داسې لفظونه پکارول چې د یو مصدر نه مشتق وي داسې صنعت ته اشتقاق وائي۔

حېرانتیا مینې ته مې شوه حېرانه
منزله! لر شه چې وجدان وژاړم

په دې شعر کښې حېرانتیا او حېرانه د حېرانېدل مصدر نه مشتق دي د دواړو لفظونو ماده یوه ده۔

۱۰۔ صنعت معما:- په شعر د څه مقصد او مدعا طرف ته په دقیق رمز سره اشاره کولو ته معما وئیلے شي په اول نظر پرې بنده نۀ رسي خو په ډېر غور او فکر ترې نه دَ مقصد او مدعا طرف ته انتقال کېږي۔

ښائسته پېرزو ده د فطرت عجیبه
ګوره چې پټ تورو خالونو کښې ئې

په اول نظر د دې شعر نه مطلب راویستل ګران کار دے خو چې په دقیق نظر ورته وکتلے شي نو شاعر وائي چې اے ربه دا د فطرت څۀ عجیبه او ښکلې پېرزو ده چې فطرت رانه تۀ په خپلو پردو کښې پټ کړے ئې۔

۱۱۔ صنعتِ مسمط: په غزل یا قصیده کښې د قافیې نه علاوه درې درې یا زیاتې سجع یعني هموزن ټکي راوستل[22] د تیت پرک نه دَ دې صنعت حواله څۀ په دې ډول ده۔

بېمثاله، باجماله، لازواله، با کماله
سخن فهمه، معصوم جسمه، همه قسمه، دُرمرجانه
زړۀ بېتابه، رُخ مهتابه، زلف شتابه، پر شبابه
هیله سازه، دلنوازه، سوزو سازه، تل خندانه

داسې نور صنائع لفظي به هم په تیت پرک کښې وي خو انسان په خپل وس پړ دے۔

(ii) صنائع معنوي یا معنوي ښائست:- په کلام کښې داسې لفظونه استعمالول چې په معنيٰ کښې حسن، ښکلا، اثر او وضاحت پېدا کوي دې ته معنوي ښائست وائي د صنائع معنوي هم ډېر قسمونه دي خو چې

[22] صفحه 38، مثالونه مثالونه، شیخ نور علي نور، چاپ کال 2013

مونږ ته کوم قسمونه په تیت پرک کښې په لاس راغلي دي نو دلته به صرف په هغه قسمونو بحث کوو۔

۱۔ صنعت طباق یا تضاد:۔ په شعر کښې متضادو معنو د لفظونو استعمالولو ته صنعتِ طباق یا تضاد وائي یعني دوه داسې لفظونه پکارول چې معناګانې ئې د یو بل مخالفې وي رومان صېب دا صنعت داسې استعمال کړے دے۔

تیارو د جهل له رڼا حبیبه
کړه منوره دې دنیا حبیبه

یا لکه دا شعر

د شپې رهزن و برېږي له رڼا نه په تیارهٔ کښې
تکړې په مثال د ښاپېرک وهي او ځي

په دې دواړو شعرونو کښې رڼا او تیاره دوه متضاد او د مخالفو معنو الفاظ استعمال شوي دي۔

۲۔ صنعت مراعاة النظیر:۔ په شعر کښې د یو قبیل او متلازم الفاظو استعمال ته صنعت مراعاة وائي دا الفاظ به د یوې موضوع سره مناسبت لري لکه وریځ، باران، ښاڅکي، تندر وغېره د رومان صېب په شعر کښې مثال داسې دے۔

د ژوند نوکې مې خښې لکه آس ستا په جمال کړې
هجران لکه کوچوان مې په چابک وهي او ځي

یا لکه دا شعر:

د تورو شپو او د تیارو سفیران
د رڼ سحر رهبر ته مخه نیسي

ه اول شعر کښې أس، کوچوان او چابک د يو قبيل لفظونه دي او په
ويم شعر کښې د تورو شپو، تيارو او د رڼ سحر الفاظ د يو بل سره
تلازم دي.

- صنعت مبالغه:- يو څيز په ښۀ والي يا بد والي کښې داسې حد ته
سول چې عقلاً يا واقعتاً کېدل ممکن نۀ وي داسې صنعت ته صنعت
بالغه وائي د دې درې قسمونه دي تبليغ، اغراق او غُلو-
اته د رومان صبب په شاعرۍ کښې صنعت مبالغه کښې اغراق صنعت
، لاس راغلو ا اغراق، يو څيز دومره وچتول يا دومره راښکته کول چې
نلي طور خو امکان لري ولې واقعتاً ممکن نۀ وي[23]

ما څۀ وئيلي دي کۀ هسې دې بانۀ مراوي دي
نن دې جانانه! چې شغلې د مخ له نمره ننۀ ځي
نلاً خو د مخ نورانيت ممکن دے خو واقعتاً د مخ نه شغلې نۀ ځي

صنعت حسنِ تعليل:- شاعر کله کله په شعر کښې د خوند و اثر پېدا
لو د لپاره يو صنعت ته داسې وجه پېدا کړي چې په حقيقت کښې ئې
ه وجه او سبب نۀ وي لکه په دې شعرونو کښې چې رومان صبب ئې د
فت د پاره وجه ښودلې ده خو حقيقت کښې ئې دا وجه نۀ ده.

ګلزار کښې د هر ګل خوشبو چې ګل کښې شوه راټوله
خورې زلفې هغه جوړوې په لار باندې تېرېږي

چې کېږور په خپله غېږه کښې ځائے نۀ کړو
داسې وګڼه پښتون تالا ترغه شۀ

صفحه 105، زرکانې، مشتاق مجروح يوسفزے، چاپ کال 1995، تاج پرنټنګ پريس پېښور

په اول شعر کښې په ګلزار کښې د خوشبو نشتوالي د پاره دا سبب ښودل چې محبوبه خورې زلفې په لاره تېرېږي د محبوب د زلفو د خوشبوئې نه د ګلونو خوشبوئي شرمنده کېدل او په ګلونو کښې واپس راتولېدل ممکن نۀ ده. دا سبب ښودل د حقیقت نه لرې د ے او په دویم شعر کښې کېمور غر پښتون ته په خپله غېږه کښې ځائے نۀ ورکول د پښتون د تباهۍ سبب هم د حقیقت نه لرې خبره ده په اول شعر کښې صنعت مبالغه هم شته.

۵- صنعت تنسیق الصفات:- په شعر کښې د څیز د یو نه زیات صفتونو بیانولو ته صنعت تنسیق الصفات وائي لکه د رومان صېب په دې شعر کښې.

زۀ پــه تــا پســې کړېــږم لــږ مــې وپوښــته جانانــه
لــب شــرینه، مــاه جبینــه، ګــل ورینــه، ګــل ریحانــه

په دې شعر کښې د محبوب ګڼ صفتونه بیان شوي دي لب شیرینه، ماه جبینه. ګل ورینه او ګل رېحانه ورته وئیلے شوي دي.

۶- صنعت جمع:- په شعر کښې چې د کار کېدلو د پاره ډېر عوامل بیان شي نو دې ته صنعت جمع وئیلے شي لکه په دې شعر کښې.

یــو یــار یــو ئــې یادونــه بــل ئــې غــم بــل ئــې هجــران
د زړۀ د کــور کنــډر مــې مشــترک وهــي او ځــي

د زړۀ د کور کنډر د وهلو د پاره، یار، د یار یادونه، د یار غم او د یار هجران عوامل ښودلې شوي دي. ګڼ څیزونه د یو حکم لاندې راغلي دي.

۷- حسنِ مطلع:- د غزل یا نظم ړومبے شعر په داسې منزغه، رنګینو او زړۀ راښکونکیو الفاظو کښې وئیل چې اورېدونکے د ټول غزل یا نظم په اورېدو مجبوره کړي. داسې مطلعې ته حسنِ مطلع وائي چې دا هم یو صنعت دے.

مـخ پـټ سـاتي لـه مـا نـه تربـوزک وهـي او خـي
دا څـوک دے چې زمـا د زړهٔ نـه چـک وهـي او خـي

صنعت ارسال المثل:- په خاص طريقه په شعر کښې يو متل ذکر کولو
صنعت ارسال المثل‌وائی د تيت پرک نه ئې مثال دا دے۔

رقيـــب پـــه نـــاز او ادا څـــهٔ پـــوهېږي
د زررو قـــــدر د زرګـــــر ســـــره وي

.رو قدر په زرګر وي" يا " د زرو قدر د زرګر سره وي "متل په خاص
قه ذکر شوے دے۔

منعت ارسال المثل يو څو نورې نمونې ستا د ورانديې کوم چې په
ې دا صنعت موجود دے

يـــار پـــه لســـتونې کښـــې مـــار پـــټ ســـاتلے
زمـــا اخـــلاص ســـره کـــړي چـــل مسلســـل

رومانـــه! هغـــه چـــې ئـــې نـــرخ نـــهٔ منـــي
تـــهٔ څـــهٔ درنـــه ســـپکه تلنـــه کـــوې

دا شعر

چـــې د ســـپکو ســـره درونـــد کښـــيني ســـپکېږي
د درنـــو ســـره چـــې ســـپک کښـــيني درانـــهٔ شـــي

منعت هجو مليح:- په شعر کښې د چا بدې د ښهٔ والي په انداز کښې
لو ته هجو مليح وائي شاعر اکثر داسې د طنز د پاره کوي لکه بزدل
ته شېر وئيل۔د تيت پرک نه ئې مثال دا دے۔

د کـــانړي ســـخت لـــرونکے زړهٔ پـــه يتـــيم لاس راکـــاږي
خـــالي د وېـــرې نـــه کـــوځې ســـتا د ورو پرتـــې دي

دلته د کاڼي نه سخت زړۀ لرونکي باندې طنز شوے دے یعني دا دومره ظالم دے چې د دۀ له وېرې نه ماشومان په کوڅو کښې لوبې نۀ شي کولے کوڅې شاړې پرتې دي نو دا څنګه کېدے شي چې دے دې د یتیم په سر لاس راکاږي۔

۱۰۔ صنعت لف و نشر:۔ په شعر کښې په اوله مصرع کښې د یو څو څیزونو ذکر کولو نه پس په دویمه مصرع کښې د پاسنو څیزونو سره تعلق او نسبت لرونکي څیزونو بیانولو ته صنعت لف و نشر وائي د دې دزې قسمونه دي لف و نشر مرتب، لف و نشر معکوس او لف و نشر غېر مرتب۔

مونږ ته د رومان صېب په شاعرۍ کښې لف ونشر معکوس په نظر راغلو۔ لف و نشر معکوس هغه صنعت دے چې په اوله مصرع کښې د څو څیزونو ذکر وشي او په دویمه مصرع کښې د تعلق لرونکیو څیزونو ذکر اپوټه وشي مثال کښې ئې د رومان صېب دا شعر وګورئ۔

سهل ممتنع ایهام پسې مې بائېلۀ
مشکل څکه زۀ لیدۀ شم که اسان یم

د سهل ممتنع سره نسبت لرونکے تورے اسان او د ایهام سره نسبت لرونکے تورے مشکل یعني دوه رویه (قریب او بعید دواړه مطلبونه) دے. څو اوله مصرع کښې اول سهل ممتنع او بیا ایهام ذکر شوي دي او په دویمه مصرع کښې ورسره متعلق الفاظ مشکل او اسان اپوټه ذکر شوي دي یا لکه په دې شعر کښې۔

زندګي ده بندګي ته پامته داره
چې څوک څومره دے بندي دومره آزاد دے

په اوله مصرع کښې اول زندګي او بیا بندګي ذکر شوي دي او په دویمه



Scanned by CamScanner

سرع کښې ورسره نسبت لرونکي الفاظ بندي چې د بندګۍ سره او ازاد
ې د زندګۍ سره تعلق لري په اپوته سليقه بيان شوي دي
زومان صېب په شعري مجموعه "تيت پرک" کښې نور صنعتونه هم
تعمال شوي دي خو د طوالت له وېرې ما په مذکوره صنعتونو اکتفا
ره ځکه چې بيا مقالې بل صورت اختيارولو. زۀ د "چونږ له خرواره په
ىداق په دې اکتفا کوم ځکه چې هر شعر د صنائع بدائع په تله تلل ډېر
ان کار دے او د ټولو صنعتونو پېدا کول خو سم په سپوږمۍ قدم
ښودل دي او نۀ خو چا ټول صنعتونه په يو کتاب کښې ذکر کړي دي۔

......***......

# "پټ پټوني" یو تاثر

عباس خلیل

د دنیا د رفتار سره سره افسانوي ادب یعني فکشن هم د مختلفو حالاتو د تقاضو مطابق په خپل رفتار کښې بدلون راوستے دے. د ټولو نه وړاندې په فکشن کښې داستان وۀ. بیا وروسته ناول، ناولټ او دغه شان بیا وروسته افسانه او په افسانه کښې هم مختلف انواع لکه مختصره افسانه ) چې په انګریزي ادب کښې ورته (short story وائي یا وړه مختصره افسانه short short story. په دغه ټولو اصنافو کښې بنیادي څیز قیصه ګڼلے کېږي، قیصه پوره کول او د قیصې لوازمات پوره کول په افسانه کښې اسان وو ځکه چې"د افسانې کینوس د مختصرې یا وړې مختصرې افسانې په نسبت وسیع وو. خو ولې په وړه مختصره افسانه کښې قیصه او د قیصې لوازمات پوره کول د لیکوال د پاره ګرانه شوه. خو بیا هم داسې لیکوالان شته چې دغه challenges هم پوره کوي. په دې challenging دور کښې ادب هم challenging اصناف پیدا کړل لکه وړه مختصره افسانه.

خپلې موضوع طرف ته راځم چې هغه د "ایاز الله ترکزي صیب افسانې" ده. لکه څه رنګه چې ما بره ذکر اوکړو نو په دغه چیلنجنګ لیکوالانو کښې یو نوم د ترکزي صیب هم دے. ځکه چې د دوي افسانې هم مختصرې او وړې مختصرې افسانې دي. نو په دې کښې بیا د کمال خبره دا ده چې دغه افسانې په لوازماتو هم پوره دي. د موصوف د افسانو ځلنده خوبۍ ځانګړې قیصې او نوي موضوعات دي. لکه محترم نورالامین یوسفزي صیب د موصوف د افسانو په اړه لیکي چې:

"د ایاز ټولې افسانې په اسلوبیاتي توګه روایتي او بیانیه دي... په مجموعي حیث ئې د افسانې په وجود موټے کلک وي خو کله کله ترې

ګاډۍ کچې ته هم شي زما په خیال قیصه که د افسانې د شا هډوکے دے نو مظبوطه کردار نګاري پکښې فعالیت او ژوند راتوکوي او د ایاز په افسانو کښې به شاید چې د پلاټ ډېر کلک والے نه وي خو د هغهٔ کردار نګاري د هغه د ټولنې د جوختې مشاهدې واضح ثبوت دے۔ په هره افسانه کښې یوه خوږه قیصه هم لري"

د موصوف د افسانو په اهمو خصوصیاتو کښې یو خاصیت د کلي، چم ګاونډ خانګړې عکاسي ده. موصوف د کلي د رواجونو، رسمونو، معاشرت و ثقافت او نور داسې کلي سره تړلے شوي څیزونو عکاسي په داسې خانګړي انداز کښې کړې ده چې هر پښتون ورته ګوته په غاښ پاتې شي. او بیا په بعضې افسانو کښې د دغه کینوس په شا د کلي یو بد شکله او بې رونقه څهره هم خپلو لوستونکو ته وربښائي چې مقصد ئې صرف او صرف اصلاح وي. پټ پټونې، اثر، دلال او خبرماره افسانې ئې د دغه خاصیت اعلیٰ نمونې دي.

د موصوف افسانې د حقیقت نګارۍ په کالو هم مزینې دي. حقیقت نګاري څه ته وایي وړاندې خو په دې لږ غور پکار دے. د حقیقت نګارۍ په اړه د اردو ژبې نوموړے لیکوال ډاکټر سلیم اختر لیکي چې:

"حقیقت نگاری کو داستان کے طلسمات اور رومانیت کی پر تخیل فضا کے برعکس سمجھا جا سکتا ہے. حقیقت نگار زندگی کی تصویر کشی میں نہ تو ضرورت سے زیادہ شوخ رنگ استعمال کرتا ہے اور نہ اسے غیر حقیقی بنانے کی سعی کرتا ہے. اس لیے وہ موضوعات اور مسائل زیست جنہیں رومانی مصنفین نے درخورِ اعتنا نہ گردانا یا جن کی داستانوں میں کھپت نہ ہو سکتی تھی ان کے بارے میں سوچنا اور لکھنا آسان ہی نہیں بلکہ ایک لحاظ سے تو ضروری بھی ہو گیا کہ حقیقت نگاری ان کے بغیر ہو ہی نہ سکتی تھی. یہی نہیں بلکہ محبت، نفرت اور جنس سے بھی سنہری لبادے اتار کر اور قدیم اور مقبول انداز کے برعکس "رومانی ہالہ" کے بغیر ہی ان کی تصویر کشی کی گئی". (افسانہ حقیقت سے علامت تک)

د موصوف په افسانو کښې هم حقيقت نګاري د دغه ذکر شوې ليکنې
معيار پوره ښکاريږي او په دې خاصيت کښې هم تر ډېره حده پورې
کامياب ښکاري. اثر. خېرماره وغېره افسانې ئې د دغه خاصيت اعلیٰ
نمونې دي.

دوي په خپلو افسانو کښې بعضې نفسياتي اړخونه هم چېړلې دي
موصوف د انساني نفسياتو په مطالعه باندې هم خبرداره دے. ځکه ئې
کردارونه د انساني نفسياتو موافق غږولي او لوبولي دي. له دغې خاصيت
په وجه د دوي د افسانو کردارونه چاک و چوبند او ژوندي ګڼلے شي.

د موصوف د افسانو بل خلنده خاصيت ساده، پسته او عام فهمه ژبه
لهجه ده. که د يو ليکوال ليک هر څومره په تکنيکي توګه پوره وي خو ول
که ژبه او لهجه ئې د لوستونکو د ماحول او د هغوي موافق نه وي نو د دغ
ليک نه لوستونکي هغه رنګ خوند او مزه نه شي اغستې او نه د ليکوال
زړه مقصد او مدعا حاصلولے شي.

موصوف په خپل افسانوي باغ کښې د تجسس يوه مېوه داره ونه هم کرل
ده.چې په وخت د ضرورت خپلو لوستونکو له ترې نه دغه مېوه ورکوي. اث
افسانه ئې د دغه خاصيت يوه اعلیٰ نمونه ده.

الغرض چې د اياز الله ترکزي صېب افسانې د افسانې د لوازماتو په اړ
ډېرې ښائسته او ښکلې افسانې دي او بالکل د لوستونکو د تندي
ماتولو جوګه دي.

# په کال 2020 کښې وفات شوي شاعران

فیروز خان صادق

په کال 2020 کښې که یو طرف ته پښتو ادب ته یو شمېر فایدې اورسیدې ګڼ شمېر کتابونه چاپ شو ادبي تولنې جوړې شوې او دغسې ادبي هلې ځلې جاري پاتې شوې نو بل طرف ته ئې یو شمېر نقصانونه هم وکړل او هغه د هغو لیکوالانو په صورت کښې چا چې تل د پښتو علم او ادب شمع روښانه ساتلې وه چې د دغو تولو شاعرانو ادیبانو د ژوند او فن یوه لنډه جائزه مو ستاسو د دلچسپۍ په خاطر راغونډه کړې ده او ستاسو حضور ته ئې په ډېره مینه او احترام وړاندې کوو۔

عادل قریشي:د پښتو دا زلمے شاعر د مردان معیارو کلي اوسېدونکے وۀ۔ په کال 1979ء کښې د محترم غني الرحمان کره زېږېدلے وۀ۔ خپل نوم ئې سیف الرحمان وۀ۔ په ادبي دنیا کښې ئې د عادل قریشي په نوم شهرت لرلو۔ د مردان په ادبي محفلونو کښې به په باقاعدګۍ سره شریکېدو۔ په کال 1996ء کښې د "سکني مابنام" په نوم کتاب چاپ شوے وۀ۔ نوره شاعري هم ورسره وه غوښتل ئې چې هغه هم چاپ کړي خو د زړۀ دورې له کبله په 23 جنورۍ 2020 وفات شۀ۔

یار حُسین ساحل افریدے:د پښتو ژبې دا مشر شاعر یار حُسین ساحل افریدے په 1948ء کښې د خیبر ضلعې په نیکي خېل قبیلې کښې د شاه حسن افریدي مرحوم کره پېدا شوے وۀ تر اتم تولګي ئې ذدکړې وکړې او بیا ورته د خوارۍ مزدورۍ ذمه واري ور په غاړه شوه۔ شاعري ئې د سکول د وخت نه شروع کړے وه د ساحل چپې او څار ئې چاپ شوې شعري مجموعې دي۔ د کلام نومونه ئې دا ده:

درد د هجر مې په تن دے غرونه غرونه
غم د يار مې په بدن دے غرونه غرونه
زۀ د هغې پښتنې خاورې پښتون يم
چې ښائست ئې د چمن دے غرونه غرونه
زۀ ساحل په افريدو کښې ذخه خېل يم
خو خیبر زما وطن دے غرونه غرونه

د پښتو دا مشر شاعر په 26 جنوري 2020 وفات شۀ۔ په ګور ئې نور شه۔

**واجدا الله بلبل**:د پښتو دا نامتو شاعر واجد الله بلبل په 1955ء کښې د اروابناد معاذ الله خان په کور کښې د چارسدې په رزړو کلي کښې پېدا شوے وۀ د بلبل "فرياد" په نوم نوم ئې شعري مجموعه چاپ شوې ده۔ د کلام نمونه ئې دا ده۔

اشنا شروع کړې په وصلت کښې د هجر حبرې
لکه کوي څوک په بهار کښې د خزان حبرې
ښکاري جوړ شبخ هم دا خپل زړۀ چرته کښې وبائېللو
چې پرې خوړې لګي د مينې د جانان خبرې
نن راته مخکښې مخکښې کېږي پخواني وختونه
هغه د يار په خوږه ژبه د درمان خبرې
په جدائي هېڅ خفه نه يم دا راځي مينه کښې
خفه په دې يم چې شوې جوړې د جهان خبرې
لاړو بلبل د يار په تورو سترګو قتل شولو
اوس به ملګري يادوي په ډېر ارمان خبرې

واجد الله خان بلبل په 22 فروري 2020 وفات شۀ۔

**عصمت الله سپرلي خېل**:د پښتو دا ستر شاعر عصمت الله سپرلي خېل په

۔19ء کښې د صالح خان په کور کښې د لکي مروت په سرائے نورنګ کښې
یدلے وۀ۔ د شاعرۍ څو کتابونه ئې چاپ شوې دي۔ چې پکښې "ګیله،
ے مې درباندې، د سپرلي خېل" په نوم شامل دي۔ د کلام نمونه ئې داسې

لاچــې مئــبن نــۀ وے پــه تــا او لاهجــران نــۀ وے
لاچــې شــیرینه یــاره دومــره پــه مــا ګــران نــۀ وے
د پــاک الله بــه څــۀ کــم شــوي وو پــه دې خبــره
چــې محبــت کښــې وے مــزې مــزې ارمــان نــۀ وے
مــا سـپرلي خېـل بـه تـل د سـترګو اوښـکې نـۀ راتللـې
کـه مـې پـه برخـۀ چـرې سـتا غونـدې جانـان نـۀ وے

وے شاعر په 3 مارچ 2020 وفات شۀ

لاب محسود: د پښتو شاعر او مشهور صحافي اروابناد سېلاب
سود چې خپل نوم ئې رفعت الله خان وۀ۔ په 15 نومبر 1947ء کښې د
بي وزیرستان په تحصیل لدها کوټ لنګر خېل کلي کښې د جلندر خان
کور کښې زېږیدلے وۀ۔ د اعلیٰ زدکړو سره ئې د ادب او صحافت په
ان کښې قدم کېښود۔ "پرهر، خیګر، ګلونه، خلا او لونګین" ئې چاپ
ې شعري کتابونه دي، د کلام نمونه ئې دا ده۔

وینــې تلــې زمــا د خُلــې نــه تــا د ســپینې خُلــې خنــدا کــړه
تــۀ خوشــحاله مــا پــه حــال وې مــا پخپــل حــال ویــر ژړا کــړه
مـا خـوراز د مینـې واخسـت بیـا مـې پټ کـړو پخپـل زړۀ کښـې
ولــې ســترګې مــې تــم نــۀ شــوې پــرې خبــره ئــې دنیــا کــړه
پښــتونخوا کښــې جــونې ژاړي آئینــو تــه پــه کتــو شــوې
چــې ســېلاب محســود څرګنــده پــه شــعرونو ســتا ښــکلا کــړه

ب محسود په 19 مارچ 2020 وفات شۀ

**شېر افضل خان بريکوټي :** د پښتو او اردو نومیالے محقق او مؤرخ ارواښاد شېر افضل خان بريکوټي په 26 اپريل 1926کښې د ارواښاد مهابت خان صېب کره د سوات په بریکوټ کښې زېږېدلے وۀ۔ په کال 1956 کښې ئې د ودود یه هائي سکول سوات څخه لسم جماعت پاس کړو او په 1956 کښې کراچۍ ته لاړو هلته ئې د اردو کالج نه دولسم پاس کړو په هم دې ورځو کښې ئې د مجلس پښتون رياست سوات د مشر سکتر په توګه وظيفه تر لاسه کړه۔ خو هر کله ئې چې د والي سوات سره اختلافات پېدا شو نو بيا به ئې د والي خلاف په مروز او نوائے وقت اخبارونو کښې ليکل کول په 1958 کښې انګلستان ته لاړو او د عمر پاتې برخه ئې هم هلته تېره کړه خو د پښتو او اردو لاتديني کتابونه ئې وليکل او چاپ ئې کړل "دبدبه د خوشحال، د خوشحال خان خټک په کلام يو نظر، سخن طراز عبدالحمید مومند ، زمزمه، رحمان بابا د خپل کلام په رڼا کښې، عندليب سوات، حافظ الپوري، د پښتو شعر او ادب تاريخ" چې د پېښور پوهنتون په ماستر کورس کښې هم شامل دے او د اباسين ارټس کونسل ايوارډ ئې هم اخستے۔ اردو تصانيف "مولانا اخون درويزه، تعارف سوات، بايزيد انصاري، پيربابا ، اقبال ميرا همسفر، تاريخ روزګار، حکيم همدرد، تنها سفر" د پښتو او اردو دا لوے څېړنکار او تاريخ دان شېر افضل خان بريکوټي په 31مارچ 2020 د نهې په ورځ وفات شۀ او بيا د خپل کلي په قبرستان کښې خاورو ته وسپارلے شۀ۔

**شاکر الله شاکر :** د پښتو ژبې مشهور شاعر شاکر الله شاکر په لسم نومبر 1941ء کښې د پېښور سره نژدې په ريګي کلي کښې د خداے بخښلي عزيز الله خان کره پېدا شوے وۀ تر دولسم ټولګي پورې ئې تعليم کړے وۀ۔ او بيا هائيکورټ کښې ملازم شۀ چې وروستو بيا د ملازمت د مودې پوره کولو نه پس پنشني شۀ شاعري ئې د سکول د وخت نه شروع کړې وه او د

پلې علاقې د شاعرانو سره به ئې ناسته پاسته کوله چې هم دغې محبت
ې په کلام کښې پختګي پیدا کړې وه شاعري ئې د خپل چاپېرچل
ښکاسې په ډېره مؤثره پېرایه کښې کوي په ادبي غونډو کښې به ئې هم په
قاعدګۍ سره برخهٔ اخسته هم دګه وجه ده چې پخپله سیمه کښې ئې ډېر
شهرت موندلے وهٔ او په ادب پالو خلقو کښې ډېر مقبول او مشهور وهٔ۔ د
پښتو ژبې دا خادم او مئېن شاعر په نهم اپرېل 2020 د زیارت په ورځ
وفات شهٔ او هم په دګه ورځ د خپل کلي په قبرستان کښې خاورو ته
وسپارلے شهٔ۔

احمد حسن حسرت:د پښتو دا مشهور شاعر او د مرکزي پښتو ادبي
جرګه نوښار صدر احمد حسن حسرت په لسم نومبر 1947ء کښې د غلام
سرور صېب کره په نوښار کښې پیدا شوے وهٔ۔ شعرو شاعري ئې د
ووکوالي نه شروع کړې وه۔ دوه شعري مجموعې ئې د "سور کنډول او
ګوډري" په نوم چاپ شوې دي۔ د شاعرۍ نمونه ئې د یو نظم په سورت
کښې داسې ده۔

د قلعــه پــه دروازه کښــې، یــو تــور ســپے تــړلے ناســت وهٔ
یــو ســړے ورســره ناســت وهٔ، ورکــول بــه ئــې خوراکونــه
ورتــه ډک وو خانکونـــه، او دې دواړو خـــوړل څیزونـــه
چــې ئــې نــهٔ لــرل غاښــونه، هــم ئــې لــوڅې پخــې نــوکې
چــې ئــې نــهٔ لــرل غوږونــه، لکــۍ لاتــدې ورمنــډلې
دا تــور ســپے تــړلے ناســت وهٔ، یــو ســړے ورســره ناســت وهٔ
د قلعه په دروازه کښې

د پښتو دا نومیالے شاعر په 14 مئي 2020د درې اویا کلونو په عمر کښې
وفات شهٔ

الیاس تلوال:د پښتو ژبې دا مخلص شاعر الیاس الدین تلوال په کال

1948ء کښې دد پښتو نومیالي شاعر محمد دین مقید مرحوم په کور تل ضلع هنګو کښې پیدا شوئے وۀ۔ شاعري ورته د پلار په برکت په ورثه کښې رسیدلې وه۔ د پښتو ادبي چمن تل د هلو ځلو مسؤل وۀ۔ یو شمیر کتابونه ئې چاپ دي لکه "ځیرلے زړۀ، د مینې تل، د تل وړمې او وطن نغمې، اخر خواني ده کنه، راشه که ئې ګورې چې ئې حق تړوله وینا ده محمد دے، مینه اخر مینه ده، ډالۍ، پیروزئینې، دیوان الیاس تلوال" د تل اواز" او د مرګ نه پس ئې "د عشق قصه څۀ عجیبه قیصه ده" د کلام نمونه ئې دا ده:

مـــا څـــوکۍ د انتظـــار بدلـــه نـــۀ کـــړه
دا صـــحرا مـــې پـــه ګلـــزار بدلـــه نـــۀ کـــړه
ورتـــه مـــا هـــم د وفـــا میـــدان پـــرې نښـــود
د جفـــا تـــوره کـــه یـــار بدلـــه نـــۀ کـــړه
میکـــدې نـــه نیـــغ دا ســـتا کـــوڅې تـــه راغلـــم
بـــې خـــودۍ کښـــې مـــې هـــم لار بدلـــه نـــۀ کـــړه
امیـــد شـــته چـــې بـــه زمـــا پـــه چمـــن راشـــي
اراده کـــه بیـــا بهـــار بدلـــه نـــۀ کـــړه
زۀ تلـــوال الیـــاس دې څـــۀ کـــوم اختـــره
غیـــږه مـــا ســـره مـــې یـــار بدلـــه نـــۀ کـــړه

د پښتو دا وتلے شاعر په 24 مئي 2020 د ورکوکي اختر په ورځ د دوه ایا کالو په عمر کښې وفات شۀ۔ او د خپل وصیت تر مخه د رحمان بابا هدیرې هزار خوانۍ پیښور کښې خاورو ته وسپارلے شۀ۔

وصال احمد نسیم: د پښتو دا مشهور شاعر وصال احمد نسیم په شپږم 1941ءدسمبر کښې د پیښور سره نزدې کلي ارباب لنډۍ کښې د مرزا تاج محمد په کور کښې زیږیدلے وۀ اعلیٰ تعلیم یافته او د جبل په محکمه کښې ئې ملازمت کولو شاعري ئې د هلکوانۍ راسې کوله د پښتو سره ئې

.اردو کښې هم ډیره شاعري تخلیق کړې ده د کلام نمونه ئې دا ده.

خــومره کمـــال دے د غـــنم دانـــه کښـــې
راز د جـــلال دے د غـــنم دانـــه کښـــې
حُســـن وعشـــق او لېونتـــوب او عقـــل
د خـدا ے جمـال دے د غـنم دانـه کښـې
د غـابښ برېښـنا د شـونډو سـرۀ او شـفق
د بـوډۍ تـال دے د غـنم دانـه کښـې
د آدم اوښـکو پـه مـخ لاړ جـوړه کـړه
ښـکاره مـې حـال دے د غـنم دانـه کښـې
هـم مـرور شـۀ د غـنم پـه دانـه کښـې
هـم دې وصـال دے د غـم دانـه

ا لوے شاعر په 26 مئي 2020 د وریښې ناروغۍ له امله وفات شۀ.

جلبل خټک: د پښتو دا انقلابي شاعر او ژورنالسټ جلبل خټک چې خپل
وم ئې وکیل شېر وۀ په څورالسم مارچ 1978 کښې د علي محمد په کور
ښې د مردان ساولډهېر کلي کښې پېدا شۀ. د تعلیم نه پس ئې د صحافت
ېدان کښې قدم کېښود ورسره ئې شاعري هم کوله د حالاتو جبر ووهلو خو
قابله ئې وکړه د پښتو ادبي ټولنو لاړمه برخۀ وه د شعر نمونه ئې دا ده.

انقـلاب بـه جـوړ راځـي خـو ویـر بـه جـوړ کـړي
د دې خـاورې عجیبـه تصـویر بـه جـوړ کـړي
پـه لعلونـو ګلـدرو بـارود وریـږي
ممکـن نـۀ ده چـې د دوي تقـدیر بـه جـوړ کـړي
لارخطـا ده د منطـق او فلسـفې نـه
دې حـالاتو کښـې یـو لـوے تغیـر بـه جـوړ کـړي
هـر یـو څیـز پـه عقـل مـه تلـه کـم عقلـه

د خوبونـــو حـــادثو خميـــر بـــه جـــوړ کـــړي
د نـــرۍ پـــه دیـــوال جـــوړه یـــو نقشـــه ده
بلهـا شـي د یـو پښـتو راه ګیـر بـه جـوړ کـړي
ســـرمائي د جلبـــل دغـــه تجزیـــه ده
چـې مـزدور پـه دنیـا وي جـاګیر بـه جـوړ کـړي

دا انقلابي شاعر په28 مئي 2020 وفات شۀ او بیا د خپل کلي په قبرستان کښې خاورو ته وسپارلے شۀ

سید عابد شاه عابد: د پښتو او اردو دا نوموړے شاعر او ادیب سید عابد شاه عابد په څوارلسم اګست 1937ء د بلوچستان سر ښار کوئټه کښې د سید یار محمد شاه په کور کښې زیږېدلے وۀ- د بلوچستان پوهنتون څخه ئې ایم اے پښتو او اردو سندونه اخستي وو- د بلوچستان پوهنتون پښتو اکیډیمۍ صدر هم درې کرته پاتې شوے دے- د معلم په حېث ئې وظیفه تر سره کړه یو شمیر اثار ئې په مختلفو مطبوعاتو کښې چاپ شوي دي او په کتابي بڼه هم چاپ شوي دي دا نوے لیکوال په دویم جون 2020 د نهې په ورځ د درې اتیا کالونو په عمر کښې وفات شۀ - او بیا په خپل پلارني قبرستان کښې خاورو ته وسپارلے شۀ د کلام نمونه ئې دا ده۔

د ژونـدون پـه سـمندر کښـې چـې هیجـان دے
د سـاحل پـه نـرۍ غـاړه یـو طوفـان دے
د وصـال همـه خوبونـه سـره لمبـه شـو
سـتا د حُسـن دا اثـر دے کـه هجـران دے
زمـا د فکـر یـو جهـان وۀ لاړو ورک شـۀ
د اکـرم دا عنایـت د بیابـان دے

ماسټر جمال: د پښتو دا مشهوراو معروف شاعر او ادیب او مشر لیکوال ماسټر محمد جمال خان چې په ماسټر جمال مشهور وۀ- په شپږم جون

1935 د بنو په کوټکه خون دان منډان کښې د اخون داده عبدالخبیر کره پیدا شوے وۀ د تعلیم او تربیت نه پس په محکمه تعلیم کښې د معلم په حېث ئې وظیفه سنبال کړه او هم په دې دوران کښې ئې شاعري هم شروع کړه د شاعرۍ مجموعه ئې د "وچې شونډې" په نوم چاپ شوې ده د بنو په ادبي غونډو کښې ئې فعال کردار لوبولو د کلام نمونه ئې دا ده۔

د سپرلي خبره پرېږده د ګلونو قیصې مۀ کړه
راله مۀ چېړه زخمونه د اورونو قیصې مۀ کړه
ستا قسم راته معلوم دے خو د خُلې خواب دې نشته
د وعدې خبره پرېږده د لوظونو قیصې مۀ کړه
درد ېدلي غم ځپلي غریبو نیولي سها ختلي
دا وختونه مې د ژوند دي د وختونو قیصې مۀ کړه
د جمال تندے به مات شي د حالاتو په منځ پوه یم
هر څو دار تندے ماتېږي، د جرمونو قیصې مۀ کړه

ماسټر جمال په شپږم جون 2020 د پنځه اتیا کلو په عمر کښې وفات شۀ

رحیم داد همزولے:د پښتو دا لوے شاعر او ژورنالسټ رحیم داد همزولے په 1327 هجري کښې د ننګرهار ولایت دبدر خېلو په کلي کښې د اسلم خان په کور کښې وزېږیدو۔ لوړې زدکړې ئې وکړې او بیا ئې په بېلا بېلو علمي او فرهنګي ادارو کښې دنده تر سره کړه شاعري ئې د وړوکوالي راسې کوله۔ د کلام نمونه ئې دا ده

ما د سپرلي مظاهره په اوچ درمان کړې ده
د للمې ګل یم ګزاره مې په باران کړې ده
په تیتو سترګو مې په غلا دا اظهار نۀ دے کړے
تل مې په هسکه غاړه ننګه د انسان کړې ده

د زړونــو تــل تــه بــه ورکــوز شــم د خلــوص پــه لاره
مــا بدرګــه همــښش د ســولې د کــاروان کــړې ده

دا لوی شاعر ادیب او ژورنالسټ استاد رحیم داد همزولے په 13 جون 2020 وفات شۀ۔

نوبهار شاه خټک :نور بهار شاه خټک په 1957 کښې د نوښار ضلعې په مشهور کلي شیدو کښې د سید شاه بادشاه صیب کره زېږېدلے وۀ۔ تر لسم جماعت ئې زده کړې وکړې او بیا د محنت مزدورۍ په وجه ئې نور تعلیم او نۀ کړے شۀ۔ شاعري ئې ساده او روانه ده ریډیو پاکستان کښې ئې څو کلامونه ریکارډ شوې دي د خټک ادبي ثقافتي جرګه شیدو باني وۀ۔ کتاب ئې نۀ وۀ چاپ شوے خو د موسودې په بڼه د چاپ ه انتظار دے د کلام نمونه ئې دا ده۔

ماتــه کــه چــل نــۀ راځــي دا نــۀ راځــي
نــوره مــې مخــې تــه دنیــا نــۀ راځــي
تــا چــې خنــدلي د رقیــب ســره دي
څکــه خــو ژاړمــه خنــدا نــۀ راځــي
چــې تــر جنونــه ئــې راورســولم
نوبهــار وائــي اوس اشــنا نــۀ راځــي

د پښتو دا لوے شاعر په 17 جون 2020 د ورپېښې ناروغۍ له امله وفات شۀ او بیا د خیل کلي په قبرستان کښې خاورو ته وسپارلے شۀ۔

ګلاب خان ګلاب : د پښتو دا نامتو شاعر ګلاب خان ګلاب په 1968 کښې د کوهاټ ضلعې په یو کلي پایا تترخېل کښې د محترم جان محمد صیب کره زېږیدلے وۀ۔ د تعلیم نه پس ئې د معلم په حېث وظیفه اجراء کړه د شعرو شاعرۍ شوق ئې د وړوکوالي نه وۀ۔ هم په دې اساس ئې شاعري کوله په خپله علاقه کښې ئې د ژوارکي ادبي ستوري کوهاټ په نوم تولنه جوړه

کړي وه د کلام نمونه ئې دا ده۔

مـا سـره تـهٔ بـه لوبېـدلې هغـه ښـې ورځـې وې
دواړو بـه ګـډې څرولـې هغـه ښـې ورځـې وې
اوړمـې غرمـې بـه وې د خـراړو اوازونـه بـه وو
سـيوري تـه مـونږ بـه پـنـډولې هغـه ښـې ورځـې وې
ګلابـه ښـهٔ ئـې د خيـالونو تـال کښـې وزنګېـدم
پکښـې جـوتې بـه مـې وهلـې هغـه ښـې ورځـې وې

دا نامتو شاعر په17 جون 2020 وفات شهٔ

اسلام الدين دلګير: د پښتو دا مشر شاعر اسلام الدين دلګير په لسم اپرېل 1942کښې د بنو سره نزدې سيمه غورواله کښې د طاهر الدين صبب په کور کښې زېږېدلے وهٔ۔ اعلیٰ تعليم يافته وهٔ۔ د بنو په ادبي حلقو کښې ئې فعال کردار تر سره کولو د شاعرۍ مجموعې ئې د "زرغون ګلونه، سويلي لغلونه، مينه مې لګي، زما اشنا نبي اکرم دے" د کلام نمونه ئې دا ده۔

خـزان راغـے شـوله ماتـه د بهـار مـلا
ښائسـته بـه پـاتې نـهٔ شـي د ګلـزار مـلا
مـا بـاور دربانـدې وکـړو چـې مـې يـار ئـې
تـا مـې ماتـه کـړه ناترسـه پـه اعتبـار مـلا
مخـامخ چـې مـخ تـه راشـي مـخ مـې نـهٔ کـړي
مـا دلګيـر پـه لـوري واړوي نګـار مـلا

عمل خان سياح: دا مشر شاعر او اديب په 19 جون 2020 وفات شه۔

د پښتو مشهور شاعر ارواښاد عمل خان سياح په وړومبي ستمبر 1941 کښې د کوهاټ تحصيل لاچۍ په درملک کلي کښې د خدائے بخښلي محمد اقبال صبب کره زېږېدلے وهٔ۔ اعلیٰ تعليم يافته وهٔ په محکمه تعليم

کښې اعلیٰ افسر وۀ۔ پښتو ادب سره ئې واسطه وه شاعري ئې په مختلفو اخبارونو او مجلو کښې چاپ کېده په 22 جون 2020 دا یو کم اتیا کلونو په عمر کښې وفات شۀ کتاب ئې نۀ دے چاپ د کلام نمونه ئې دا ده۔

تـــوري شـــپې د ژونـــدګۍ بـــه مـــې رڼـــا شـــي
کـــه زمـــا د بخـــت خفـــه لیلـــیٰ رضـــا شـــي
کلـــه کلـــه دومـــره تنـــګ شـــم زمـــانې نـــه
چـــې ګوګـــل دننـــه زړۀ مـــې خلـــې لـــه راشـــي
څـــه د مینـــې مجبـــوري ده څـــۀ دنیـــا وي
څـــۀ حیـــا د پښـــتنې مهـــرمن ســـیوا شـــي
زۀ بـــه څـــۀ وایـــم چـــې څـــۀ ښـــادي مـــې وکـــړه
کـــه لحـــد کښـــې د دنیـــا حـــال راتـــه راشـــي

**همایون همدرد:** د پښتو ژبې لوے شاعر ادیب او ډرامه نګار اروښاد پروفېسر همایون خان المعروف پروفېسر همایون همدرد په دریم 1976 مارچ کښې د نوښار ضلعې په تاریخي کلي خویشکي پایان کښې د خداے بخښلي مشال خان کره زېږېدلے وۀ اعلیٰ تعلیم یافته وۀ۔ اوس مهال ئې د پي ایچ ډي مقاله لیکلې وه او دفاع ئې پاتې وه په مختلفوکالجونو کښې د پښتو پروفېسر وۀ۔ شعرو ادب سره ئې د ورکوالي نه مینه وه درې شعري مجموعې ئې چاپ دي چې یوه "سپیلني، ګلګون، چینه" دي۔ رودادونه ئې د مرکزي پښتو ادبي جرګې نوښار د پروفېسر ډاکټر زېبر حسرت سره ه شریکه تالیف کړے چاپ شوے کتاب دے او د نیلاب تزکره ئې د ښاغلي رشید د جوهر په مرسته د یادې جرګې تزکره ده۔ د مرکزي پښتو ادبي جرګې نوښار، پښتو ادبي ټولنه خویشکي نیلاب ادبي جرګه نوښار، شرین کوټې، سره ئې تعلق وۀ۔ په 29 جون 2020 د فالج ناروغۍ له امله وفات شۀ د کلام نمونه ئې دا ده۔

ستا د ستم باران پرې ښه شوې دې
د زړهٔ په دشته مې وابښه شوې دې
يو مې ښرې وه رانه چا وړې ده
بل مې پټکې وهٔ رانه خهٔ شوې دې
خپسه ناسته وه د قام په مرې
سيوري د مرګ په ژوندانهٔ شوې دې
زما د ويني داغ په ما ولګيد
د کلي جنګ مې په کالهٔ شوې دې
يو همايون وهٔ د بخښلو دې اوس
ذکر مې نن په تنارهٔ شوې دې

**عبدالهاشم خان:** د پښتو نوموړې شاعر اديب عبدالهاشم خان په 20 جنوري 1948 کښې د سوات په کبل علاقه کې د حکيم خان په کور کښې زېږېدلې وهٔ. د شاعرۍ شوق ئې د سکول د وخت راسې وهٔ. بيا په سوات ادبي فضا کښې ئې نوره وده ومونده دا لوې شاعر او مبارز شخصيت په 29 جون 2020 وفات شهٔ.

**حميد الياس خټک:** د پښتو ژبې لوې خادم او ليکوال استاذ پروفېسر حميد الياس خټک په يوولسم اکتوبر 1942 کښې د کرک ضلعې په پلوسۍ بانډې کښې د عام خان خټک کره پېدا شوې وهٔ. په کال 1966 کښې ئې په پښتو ادبياتو کښې ايم اے په امتيازي حېثيت سره وکړه او په کال 1967کښې د تعليم په محکمه کښې نوکر شهٔ په کال 2020 کښې د پرنسپل په عهده پنشني شهٔ د پښتو اکېډيمۍ پېښور پوهنتون د بنيادي تعليمي پروژې د پاره درې کتابونه ليکلي او چاپ کړي دي چې پکښې يو ناول خوشحاله کورنۍ، د سندهـ خلق او زمکه او د کر کيله قيصه شامل دي پروفېسر حميد الياس خټک په 15 جولائي 2020 د چارشنبې په ورځ

وفات شۀ او د کے ډي اے کوهات قبرستان کښې ښخ کړے شۀ۔ د کلام نمونه ئې داسې ده۔

اندیښنو تـه وسوسـو تـه مـې سـور اور شـه
محبتـه پـه زړګـي مـې داسـې خـور شـه
د سـپرلي پـه ورځـو شـپو کښـې رنګینـو کښـې
تـۀ مـې خـوښ ئـې د یـار غمـه پـه مـا زور شـه
یـا خـو تنـګ وکـړه زړګیـه لېـونے شـه
سـره لمبـه شـه او سـزا د ظلـم زور شـه
سـترګې مـړې کـړه پلـو لـرې کـړه مسـکے شـه
پـه رخسـارو سـپرلے راولـه سمسـور شـه
د سـپرلي ورځـې چـې تېـرې شـې الیاسـه
بیـا د ګـل پـه شـانې رو غونـدې نسـکور شـه

نذیر بهټي: د پښتو او اردو او هندکو مشهور لیکوال ناول نګار قیصه لیکونکے، ډرامه نګار ا هر اړخیز لیکوال اروابناد محمد نذیر بهټي په دریمه فرورۍ 1940 کښې پېښور کښې پېدا شوے وۀ۔ د تعلیم د تکمیل نه پس ئې ملازمت شروع کړو ورسره ئې د لیکولو شوق هم وۀ۔ اول ئې د سټېج او بیا د ریډیو او ټي وي د پاره ګڼ شمېر پښتو اردو او هندکو ډرامې ولیکلې۔ ورسره ئې د ګڼ شمېر پښتو، اردو او پنجابي فلمونو د پاره قیصې هم لیکلې دي چې پکښې ډېر مشهور فلمونه شامل دي او په بعضې فلمونو کښې ئې اداکاري هم کړې ده د مرحوم په چاپ شوو کتابونو کښې "دوستي کے مینار ناول، پهل کیکراں دي،وفا او شام الم هندکو ناولونه دي" قدم د هنکو ډرامې دي رنګ کهانیا دے، عشق د هندکو قیصې، غلاب ددي بهار اے، تراواں، عکس پشاور او داسې نور ګڼ شمېر کتابونه ئې چاپ شوې دي او ایوارډونه ئې هم اخستي دي د ګندهارا هندکو

اکېډیمي سره ئې تعلق لرل ډېر خواري کښ لیکوال وۀ. ډېر کار ئې کړے دے او د علم او ادب په مېدان کښې ئې خپله برخه کردار لوبولې دے دا لوے لیکوال په 26 جولائي 2020 د اتوار په ورځ وفات شۀ. او بیا په خپل پلارني قبرستان کښې خاورو ته وسپارلے شۀ.

**دربخان استاد:** د پښتو تر ټولو مشر شاعر او ادیب محترم دربخان استاذ د پېښور سره نزدې بډه بېره کښې د خدا ے بخښلي ضابطه خان په کور کښې په 29 دسمبر 1918 زېږیدلے وۀ. په کال 1941 کښې ئې د سینټ کیتهډرل سکول پېښور نه د لسم جماعت امتحان پاس کړو او بیا په فوځ کښې نوکر شۀ چې دا وظیفه ئې په 15 فروري 1975 سر ته ورسوله او بیا پاتې عمر د ژبې د خدمت د پاره وقف کړو د مقامي ادبي ټولنو سره ئې تعلق وۀ او فعال کردار به ئې پکښې لوبولو د شاعرۍ ورمبې مجموعه ئې د "ازغنه دنیا خوشحاله خلق" په نوم په 2016 کښې چاپ شوے وۀ او دویمه شعري ټولګه ئې په جولائي 2019 کښې د چمن زاد دریخان په نوم چاپ شوې ده. د دې سره ئې ماشوخېل ځوک دې تاریخي کتاب دے چې دا هم په جولائي 2019 کښې چاپ شوے دے. دۀ اردو کښې هم لیکل کړي دي په 28 جولائي 2020 وفات شۀ د کلام نمونه ئې دا ده.

تورو سترګو کښې مې سینه کښې مکان جوړ کړو
زړۀ زما ئې له خوږو د جهان مور کړو
خپلې چارې د غریب په مرستة سر ته رسوے شي
را په سر کړو غریب بې غېرته ځادر پور کړو

**سلیمان لائق:** نومیالے پوهان او اکاډمسن پروفېسر سلیمان لائق چې خپل نوم ئې غلام مجدد وۀ. او په علمي ادبي دنیا کښې په سلیمان لائق مشهور وۀ. په دولسم اکتوبر 1930 چې د1309 لمیرزي کال د تلې دیو ویشتمې نېټې سره سمون خوري د پکتیکا ولایت په ایمني خېلو کښې د مولوي

عبدالغني مجددي کره زېږېدلے وۀ. لوړې مذهبي او عصري ذده کړې ئې وکړې کڼ شمېر کتابونه ئې په پښتو، دري او انګلسي ژبو ولیکل او ادبي پانګې ته ئې وسپاړل دا لوے پوهان استاد سلیمان لائق په یو دېرشتمه جولائي2020 د لوے اختر په ورځ د جرمني په یو روغتون کښې وفات شۀ. چې جسدئې وروستو افغانستان ته منتقل کړے شۀ. او هم دلته خاورو ته وسپارلے شۀ د کلام نمونه ئې داسې ده.

ډېـــر وغـــزې بـــه زمـــا لـــه مرګـــه وروســـته
زمـــا پـــه شـــعر بانـــدې وائـــي ارادونـــه
ښـائي ځینـي پـه دې پـوئې شـي چـې پـه ځُلـۀ مـې
ظالمـــــــانو لګـــــــولي وو مهرونـــــــه

درویش یوسفزے:د پښتو ژبې لوے شاعر ادیب او خدائي خدمتګار ډاکټر درونېش یوسفزے په 15 دسمبر 1945 کښې د اروابناد عنایت خان بابا کره د مردان په ګمبت کلي کې زېږېدلے وۀ اعلیٰ تعلیم یافته وۀ. د انسانیت مسیحا وۀ. ورسرد د ژبې خدمت هم د دۀ په برخه وۀ. د ادبي دوستانو مرکه پت پښتو ادبي جرګه مردان او ګمبت ادبي جرګه سره ئې تړون وۀ "لونګین، واورین، فسادونه، فکر افغان، مسکا، زرغونه، پښتو د ژبو مور، او خوشحال خان خټک" ئې چاپ شوې کتابونه دي ورسره نورهم هم ډېره ناچاپ ذخیره وه دا لوے لیکوال او په قام مئېن انسان ډاکټر درویش یوسفزے په 19اګست 2020 د چهارشنبې په ورځ د پینځه اتیا کلونو په عمر کښې وفات شۀ. د کلام نمونه ئې دا ده.

چـــې پـــه قیمـــت بـــه مـــو مـــدام د ســـر غـــزل لیکلـــو
شـــوه نظریـــه پـــاتې زمـــونږ اوس تـــر غـــزل لیکلـــو
ســـتا د ښائســـت ســـمه ژباړنـــه رانـــه نـــۀ شـــوه پـــوره
ډېـــره خـــواري کـــه وکـــړه مـــا پـــه هـــر غـــزل لیکلـــو

سکندر شاه:د پښتو دا اولسي شاعر میا سکندر شاه په کال 1935
ي د کوهات په لري پرته سیمه زېړه پټیاله کښې د زیارت شیخ الله داد
ب په مقام د ملک میا میران شاه مرحوم په کور کښې زېږېدلے وۀ۔
سري تحصیلات ئې وو ځکه چې په علاقه کښې تعلیمي اداري نۀ وې
نه تعلق ئې د مذهبي کورنۍ سره وۀ نو مذهبي زده کړې ئې کړې وې د
ر او ادب سره ئې تعلق د وړوکوالي نه وۀ د محبت ساده ادبي ټولنې
رلکي ضلع کوهاټ په باني غړو کښې وۀ۔ په کال 2004 کښې ئې شعري
موعه "د ګلو ویش" په نوم چاپ شوې ده په دوه وویشتم اګست2020
الي په ورځ وفات شۀ او بیا خېل پلارني قبرستان کښې دفن کړے شۀ۔ د
یښتې ماهر وۀ کو غزل ئې هم لیکلو چې نمونه ئې دا ده۔

تـــــا مخــــامخ ماتــــه یـــو خـــل اوکتـــــل
زۀ پـــه دې پـــوه شـــوم چـــې اجـــل اوکتـــل
دنیــــا قـــراره وه چـــې چـــاڼ مـــې کړلــــه
لکـــه چـــې تـــا ماتــــه اول اوکتـــــل .

یر سلطان غمګین:د پښتو ژبې دا نوموړے شاعر ضمیر سلطان
ګین په کال 1947 کښې د ملاکنډ په ګرهي عثماني خېل کلي کښې د
. افضل خان صیب کره زېږېدلے وۀ۔ تر لسم ټولګي ئې تعلیم وکړو او بیا
کار روزګار کښې بوخت شۀ۔ د شعر و شاعرۍ سره ئې مینه د وړوکوالي
ائمه وه ځکه نو بیا ئې شاعري هم شروع کړه د ملاکنډ ادبي ورومبے
ر هم وۀ۔ شاعري ئې په قامي درد کښې لرلې ده پښتو ادب ته ئې یو
یر کتابونه سوغات کړي دي چې پکښې "د عشق درد ، رښتونے عشق، د
ص نتیجه، د سوشل فارسټرۍ کارنامې" شامل دي
لام نمونه ئې داسې ده۔

سودا د تصور چې ستا غمونو رانه لر کړي
دننه په ګوګل هغه دردونه رانه لر کړي
د خيال په آئينه کښې شنو خالونو چې ګورم
ستا خيال ته زما خيال وي نور خيالونه رانه لر کړي

د پښتو دا لوے شاعر په 29 اګست 2020 وفات شۀ- او بيا په خپل کلي کښې خاورو ته وسپارلے شۀ-

علي شان مجبور: د پښتو ژبې دا نوميالے انقلابي او في البديع شاعر علي شان مجبور د چارسده ضلع په عمرزو امير اباد کښې د اروابناد شهزاده خان کره په کال 1962 کښې پيدا شوے وۀ په علاقه کښې د ادبي هلو ځلو په برکت ئې د شعر او شاعرۍ سره شوق پېدا شۀ- او باقاعده شاعري ئې شروع کړه تر لرې لرې به مشاعرو ته تلو د رېډيو او ټي وي په مشاعرو کښې به ئې هم ګډون کولو باقاعده تعلق ئې د جماعت اسلامي سره وۀ- پخپله وائي-

زۀ د جماعت اسلامي رکن يم
پېروکار د مودودي

د شاعرۍ درې کتابونه ئې چاپ شوې دي ې نومونه ئې دا دي "غشي لينده يادګار حيات او الله اکبر" د پښتو د اولسي شاعر په دېرشم اګست 2020 اتوار په ورځ وفات شۀ او بيا د خپل کلي په لويه اديره کښې خاورو ته وسپارلے شۀ د کلام نمونه ئې دا ده-

لاس مې په دعا باندې نيولي درته ژاړمه
امن درنه غواړم خدايه امن درنه غواړمه
خدايه په دې ښکلي پاکستان کښې امن راوله
خدايه د کافر په غلامانو ذلت راوله
خدايه زمونږ زړۀ کښې د قرآن محبت راوله

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

پیشِ نظر کتاب ہمارے واٹس ایپ گروپ کے سکالرز کی طلب پہ سافٹ میں تبدیل کی گئی ہے۔ مصنفِ کتاب کے لیے نیک خواہشات کے ساتھ سافٹ بنانے والوں کے حق میں دعائے خیر کی استدعا ہے۔

زیرِ نظر کتاب فیس بک گروپ "کتب خانہ" میں بھی اپلوڈ کر دی گئی ہے۔
گروپ کا لنک ملاحظہ کیجیے :

https://www.facebook.com/groups/1144796425720955/?ref=share




میر ظہیر عباس روستمانی

03072128068




اے زما احساسه په لمبو کښې دې رانغاړمه
امن درنه غوارم خدایه امن درنه غواړمه

ډاکټر پرویز مهجور: پروفیسر ډاکټر پرویز مهجور خویشکي په 14 جنورۍ
19 کښې د نوښار ضلعې په تاریخي کلي خویشکي بالا کښې د خدای
نسلي زرین خان کره زیږېدلے وۀ۔ په 1973 کښې د استاذ په حېث مقرر
د تعلیم سلسله ئې هم جاري وه په کال 2000 کښې ئې پي ایچ ډي وکړه
19 کښې پښتو اکېډیمۍ پېښور پوهنتون کښې د ریسرچ افسر په حېث
وظیفه تر سره کړه او په 2011 کښې پنشني شۀ مرحوم یو درځن کتابونه
پ شوې دي چې څه پکښې د کلاسیکي شاعرانو دیوانونه مرتب کول هم
مل دي د شاد محمد دیوان، د علي محمد مخلص دیوان، د واصل
ښاني دیوان، دا رزاني خویشکي کلیات، د مرزا خان انصاري دیوان،
ښاني تصوف، رحمان بابا فن او شخصیت او "بچوں کے روایتي گیت"
دو، گھریلو صنعتیں اردو، ادبي څهرې او داسې نور د مرکزي ادبي جرگه
ښار پښتو ادبي ټولنه خویشکي، ارزاني پښت ادبي ټولنه خویشکي سره
ې تلعق وۀ۔ دا لوے استاد او لیکولا په 6 ستمبر 2020 د اتوار په ورځ
فات شۀ او د خپل کلي قبرستان کښې خاورو ته وسپارلے شۀ۔
کلام نمونه ئې داسې ده۔

زۀ هجران شم تۀ تصویر شې راته ژاړې
زۀ دې غم شم تۀ په ویر شې راته ژاړې
دې نه زیاته بې وسي به زمونږ څۀ وي
زۀ په بند شم تۀ زنځیر شې راته ژاړې

محمد شفیع کامران: د پښتو نوموړے شاعر محمد شفیع کامران په پنځه ویشتم اکتوبر 1954 د چارسدې په عمرزو کلي کښې پېدا شوے وۀ۔ لسم

جماعت ئې د ترنګزو سکول څخه پاس کړے وۀ. او بیا سرکاري ملازمت کښې بوخت شۀ خو د شعر و شاعرۍ سره شوق ئې د سکول د وخت نه وۀ. اول به ئې د محمد شفیع ګناهګار په نوم لیکل کول وروستو محمد شفیع کامران شۀ په کال 1972 کښې ئې د قادریه پښتو ادبي ټولنه عمرزو بسنټ کېښودو چې په کال 1977 کښې ئې د عبدالاکبر خان اکبر د مرګ سره په هم دغه نوم یعني اکبر پښتو ادبي ټولنه عمرزو منسوب کړه نظم، غزل رباعي ا داسې نور صنعتونو کښې ئې طبع ازمائي کوله کتاب ئې نۀ دے چاپ د کلام نمونه ئې دا ده.

لیلـــیٰ هنمـــه ســـتا عرضـــونه لاحـــالات ښـــۀ نـــۀ دي
پـــوره بـــه ســـتا کـــړم ارمانونـــه لاحـــالات ښـــۀ نـــۀ دي
مـا وئیـل سـاه بـه لـړه واخلـو وخـت بـه وخـوري چورلـک
د هغـــې زیـــات شـــو فســـادونه لاحـــالات ښـــۀ نـــۀ دي

دا نامتو شاعر په 11 نومبر 2020 وفات شۀ او د کلي قبرستان کښې دفن کړے شۀ.

پیر سید سفید شاه همدرد: د پښتو بابائے صحافت د پښتو ورځپاڼې وحدت مؤسس او چیف ایډیټر الحاج پیر سید سفید شاه همدرد د پښتو شاعر، ادبي او معروف ژورنالسټ وۀ چې په کال 1927ء کښې د اروابناد سید قاسم علي شاه صبب په کور پېښور ګګه وله کښې زېږېدلے وۀ. د تعلیم نه پس ئې په مختلفو سرکاري ادارو کښې وظیفه تر سره کړه وروستو د صحافت مېدان ته راغلو په مختلفو اخبارونو کښې ئې کار وکړو بیا ئې په کال 1985 کښې د پښتو ورځپاڼه وحدت اجراء وکړه چې تر دې دمه روانه ده. د شاعرۍ ډېره برخه ئې سوزولے شوې ده خو څۀ برخه ئې ریډیو پاکستان پېښور کښې د مختلفو سندرغاړو په آوازونو ریکارډ شوې او خوندي شوې ده. د پښتو ادب او صحافت دا ځلنده ستورے په24 نومبر 2020 د درې نوي کالونو په عمر کښې وفات شۀ.

**رفیع الله خټک**: د پښتو د اولسي شاعر رفیع الله خټک په اوولسم مارچ 1962 کښې د کوهاټ ضلعې په شکر دره کښې د صالحین صبب په کور کښې پیدا شۀ۔ تر نهم ټولګي ئې سبق ووئیلو او بیا د کار روزګار په سلسله کښې د ملک مختلفو برخو کښې ئې مسافري وکړه د پټ غمي ادبي ټولنې شکر دره ضلع کوهاټ په اهمو مشرانو کښې شامل وۀ شاعري ئې د سکول په دور کښې شروع کړې وه د کلام نمونه ئې د یوې لوبې په شکل کښې داسې ده۔

چې پرې مئين وي نن هغه جینۍ ودېږي

لاسونه ئې سرۀ کېږي اوربل خوره وینه تا خو وئیل لیلیٰ زما ده
تا خو وئیل لیلیٰ زما ده کړې ئې ما سره وعده ده
دې زمانې کښې اقرار کله پوره کېږي لاسونه ئې سرۀ کېږي
اور بل خوروینه

دا اولسي شاعر د مختلفو رنځونو سره مخ وۀ۔ چې په نتیجه کښې ئې په اووم دسمبر 2020 وفات شۀ۔

دغسې د علم او ادب یو شمېر نور شهسوران هم په دې کال یعني 2020 کښې زمونږ د محفلونو څخه د دار باقي په طرف لاړل چې پکښې د اردو او پښتو او هندکو لیکوال ش شوکت، ایوب سرحد، نور الوهاب انګار او یو شمېر شاعران ادیبان هم په دې کال کښې وفات شول۔ الله پاک دې ټول مرحومین وبخښي او د دوي پسماندګانو ته دې صبرِ جمیل نصیب کړي۔

د دعا ډیوې مې بلې په مزار کړئ
د ژوندون په ښاریه کښې ماښام راغلو

......***......



فدا محمد مهجور

نظـــــر تــــه دې جانانـــــه نظرونـــــه حېرانېـــــږي
بشـــــر تــــه دې قســـــم دے بشـــــرونه حېرانېـــــږي

چـې تـهٔ راغللـې دنيـا تـه هـر خـوا مينـه ورولـې شـوه
عظمــــت تــــه دې عظيمـــــه عظمتونـــــه حېرانېـــــږي
يـــواځې زلېخـــا ګوتـــه پـــه خُلـــهٔ خـــو ورتـــه نــهٔ وه
ښائســـت تـــه د يوســـفؑ ډېـــر عالمونـــه حېرانېـــږي
روان چـــې د مکانـــه شـــو د لامکـــان پـــه لـــوري
جانـــان تـــه مـــې د زمکـــې آســـمانونه حېرانېـــږي
هـــر څـــو کـــه نمرودېـــانو غورځولـــو ســـرو لمبـــو تـــه
نـــن عشـــق د ابـــراهيمؑ تـــه ســـرهٔ اورونـــه حېرنېـــږي
حيـــران ګوتـــه پـــه خُلـــهٔ شـــو درتـــه ښـــکلي د جهـــان
ښائســـت تـــه دې د هـــر ګلشـــن ګلونـــه حېرانېـــږي

د عقـــل پيمـــانې پـــرې د اغيـــارو لړزيـــدلي
مجبـــوره ســـتا خيـــالونو تـــه لفظونـــه حېرانېـــږي





پروفيسر اسير منګل

نـۀ يـم خبـر چـې کـوي څـوک پټـه دعـا راپسـې
پـه تـوره شـپه کښـې ګرځـي سـتا د مـخ رڼـا راپسـې

د محبـت ډيـوه مـې بلـه کـړه کوټـه کښـې د زړۀ
لاس ئـې ازاد دے اوس دې الـوځي هـوا راپسـې

مـنم زمـا د رسـوائي قيصـه څـۀ پټـه نـۀ ده
زۀ چـې تنهـا يـم نـو دا څـوک کـوي خنـدا راپسـې

د هجـر دشـته کښـې خـوره ده خوشـبوئي د وصـال
زۀ تنهـا نـۀ يـم څـوک راغلـې ده تنهـا راپسـې

ښـکاري خـو داسـې چـې زمـا د جنـازې تابيـا ده
دا چـې حجـرې تـه بيـا راغلـے دے مُـلا راپسـې

اوس چـې يـو کلـے دے دنيـا بيـا هـم زۀ څـان لـه يمـه
منګلـه! يـو سـړي او نـۀ ترلـه مـلا راپسـې





لائق زاده لائق

اوس هم په زړۀ مې راورېږي ما نه هېره نۀ ده
په هر نظر کښې مې غړېږي ما نه هېره نۀ ده

زۀ چې په کومه لاره ځمه کوم طرف ته ګورم
راته مې مخې ته اودرېږي ما نه هېره نۀ ده
چې ئې خندا د تنهائۍ په نيمو شپو کښې اورم
لا مې دردونه سوا کېږي ما نه هېره نۀ ده
زما د سترې ژوند د لبوتوب ملګرې
د زړۀ په کور کښې مې اوسېږي ما نه هېره نۀ ده
کله غصه کله خندا کله نازبين ضدونه
ټول راته وړاندې وړاندې کېږي ما نه هېره نۀ ده
چې ئې سينه پورې د لاسو نخښې کله نسيم
جنون په ما پورې خندېږي ما نه هېره نۀ ده

خبر که لائقه زۀ ئې ډېر بې څوکه پاتې کړمه
ما ته به ټول عمر يادېږي ما نه هېره نۀ ده





پروفیسر ډاکټر اباسین یوسفزے

په سر مې له ماښامه اور بلېږي لکه شمع
زما په ګرېوانه اوښکې بهېږي لکه شمع
د قام په مشرۍ کښې ترېنه خلق رڼا اخلي
شمله ئې په سر دغسې خلېږي لکه شمع
د داسې خلقو عمر له ژوندون رڼا وي
تیارو ته چې تول عمر له نېغېږي لکه شمع
زۀ نۀ وایم تۀ وګوره محفل پرې منّور دے
په خلقو کښې د لرې نه ښکارېږي لکه شمع
جانان ته نزدې کېږمه جانان رانزدې کېږي
مزل مې داسې رو رو ویلې کېږي لکه شمع
فریاد او هنګامې او اسوېلې مې عادت نۀ دے
په چپه خُلۀ مې تل اوښکې څڅېږي لکه شمع
د تولو د حالاتو نه په لږ څۀ کښې خبرېږم
محفل راته په یوه سترګه ښکارېږي لکه شمع
ناڅاپه شیش محل کښې چې سیلۍ د غرض راشي
رڼا د مینې هر خوا ته رپېږي لکه شمع
د ځینو ځینو خلقو عجیبه شانې اعصاب وي
سوزېږي او ژړېږي خو خندېږي لکه شمع
په یوه سر د تیارو سره تنها مبارزه کړي
مدام له چې په خپلو پښو ودرېږي لکه شمع

وزرې راخورې کړي زما زړهٔ لکه پتنګ شي
سپوږمۍ چې په د ښوال راوڅڅېږي لکه شمع
بدلون له قربانو او زړهٔ چاودنه پېدا کېږي
کړاؤ نه موم د مومو نه سازېږي لکه شمع
یا مینه ده یا پوهه یا ښکلا ده سړے خاص کړي
سې شمېرد پتنګان ترېنه تاوېږي لکه شمع
چې یمه نو بس یمه خو چې لاړمه نو لاړم
زما نه به هېڅ شے نهٔ پاتې کېږي لکه شمع
ښکاري چې دا نمر هم د زېرګۍ څهٔ دعوېدار دے
چې هېڅ خوا ته ئې سیورے نهٔ جوړېږي لکه شمع
کبدے شي اباسین او نور سیندونه ئې وي اوښکې
دا نمر هم راته داسې معلومېږي لکه شمع

*



لطف الله خیال

جانانه ستا د چم لارې کوڅې خو داسې نه وې
څه مسته زمانه وه زمانې خو داسې نه وې

جامونه پکښې نه وینم قطار دے د سرونو
ساقي د دې نه مخکښې مېکدې خو داسې نه وې
تبارې د مابښامونو دي ګواه ستا د لوظونو
دا ولې شوې بیا ماتې ستا وعدې خو داسې نه وې
دا ولې دې د ژوند د نیمې لارې نه راستون کړم
ستا تلولې فیصلې که وې خو وې خو داسې نه وې
دا څه سپېره سپېره خزان زمونږه په چمن راغے
سپرلو کښې د ګل مړاوې دا غنچې خو داسې نه وې
د زلفو دا مزاج دې راته نن څه بدل ښکاري
پرېشانه وې مدام خورې ورې خو داسې نه وې

په خیاله دې وطن کښې خو ژوندو نه دا مړهٔ زیات شو
حېران یمه زمونږه هډېرې خو داسې نه وې





**ډاکټر عمر قیاز قائل**

چې حساس شي نو شاعر شي، چې شاعر شي قدردان شي
په نبضونو باندې پوه شي، د نبضونو ترجمان شي

هر څوک وائي چې انسان یم، کړي دعوىٰ چې مسلمان یم
انسان هغه دے چې پوهه، په معنىٰ هم د انسان شي
علم لویه سرمایه ده، څو که سوچ مو چرې اوکړو
چې بې علمه وي څوک هغه، په خپل ځان پورې حېران شي
چې دا مینه که نفرت دے، بس په دا خبره زړۀ خورم
زۀ چې څومره ورنزدې شم، هغه دومره زر روان شي
تۀ بدلون شې راوستلے، لویه خدایه! لویه خدایه!
چې خواران ټول په سکون شي، چې خوران ټول امیران شي
چې د امن سوال مو کړے، چې د امن طلب ګرُو
شي راتنګه په مونږ زمکه، هم راتنګ په مونږ آسمان شي
مینه یو خل په ژوند کېږي، مینه تل تر تله نۀ شي
ضروري نۀ ده په هر چا، مهربان چې خپل جانان شي
ستا د تورو غټو ورو څو، ستا د سترګو نه قربان شم
چې راوګورې سفر به، د ژوندون راته آسان شي

تۀ په زړۀ ئې راوربېږې، د قائل خوبونه ورک شي
تۀ په زړۀ ئې راوربېږې، چې نرے نرے باران شي



*

غمګین مایارے

نن مې رقیب د یار په در پاتې دے
ماته په سر لا دغه شر پاتې دے

منګي تیکري شو ګروځ پرېوتو
څکه د پېغلو نه ګودر پاتې دے
تورو تیارو له رڼا ګانې راوړم
دا مې په ځان باندې باور پاتې دے
بېرته راستون شه لږ امداد مې اوکړه
ما نه کرکنو کښې ځادر پاتې دے
د مجازي حُسن ولقه کښې ګېر دي
چا نه جومات چا نه مندر پاتې دے
پښتو غزل به درله زۀ غزل کړم
ما سره دغه یو هنر پاتې دے

غمګین ډېوې د آرمان بلې ساتي
چرته مزار کښې منجور پاتې دے

*



اکرم عمر زے

ستا ګلونه سترګې شو ګلونه زما سترګو کښې
ښکاري بهارونه ګلزارونه زما سترګو کښې

زۀ دا ستا له مخه د هر ښکلي مخ ته ګورمه
جوړ شي ستا بې شماره تصویرونه زما سترګو کښې
شپه مې د شبقدر وي او ورځ مې د اختر په شان
راشي ستا خیالونه، خوري ټالونه زما سترګو کښې
سترګې مېخانې، مخ ئې شودۀ، شونډې د شاتو رنګ
ګورئ زاهدانو، جنتونه زما سترګو کښې
خندګه به ئې پټې کړمه، خوب به ما له څۀ راشي
ستا د انتظار دي طوفانونه زما سترګو کښې
ستا هغه بانې د نۀ راتلو وې د حیا په نوم
اوس هم لا تازه دي پرهرونه زما سترګو کښې

پرېږده چې غړېږي عمرزے دا وصیت کوم
مرګ نه پس چې ګورې ارمانونه زما سترګو کښې





اقبال حُسین افکار

دا ستا تصویر ته په کتـــي مینه نهٔ ماڼېږي
دا تهٔ چې نهٔ ئې په سپرلو مې مینه نهٔ ماتېږي

زما د ژوند د درد و غم قیصه نغمه نغمه کړه
په دې نشو او تماشو مې مینه نهٔ ماتېږي
د ژوند تورتم کښې راته شمعه شه بلېږي مدام
په توره شپه اور اورکو مې مینه نهٔ ماتېږي
د زلفو بام باندې مې خاے کړه د ښېدیا ګلاب یم
تش د نظر په راکتو مې مینه نهٔ ماتېږي
د خپلو سترګو په کاڅو کښې را د مینې شراب
د دې شیشو په ګلاسو مې مینه نهٔ ماتېږي
د مخ شفق دې په اُفق د ماښامي پرېوتو
د سکڼ ماښام په نظارو مې مینه نهٔ ماتېږي

د فطرت غېږ کښې یم افکاره ستا یادونو سره
دغسې اوسه په پردو مې مینه نهٔ ماتېږي





## ګل هشنغرے

کـه راشـي حـادثې هـر څـومره ګرانې پـه دې زړۀ کېږي
خـو زۀ هـم حوصـلې لرمـه څـوانې پـه دې زړۀ کېږي

منم چې دنيـا لويـه ده خـو زړۀ چې سـړے لـوې کـړي
څـانېږي داسـې څـو څـو دنياګـانې پـه دې زړۀ کېږي
تراخـه د بـد نيتـې چـې تـول د خـان سـره لاهـو کـړي
ولـې د محبـت تـرې کـړه روانـې پـه دې زړۀ کېږي
تيـارو نـه خـان پخپلـه د رڼـا طـرف تـه بوځـه
ډيـوې دې بلـې اوسـاته روښـانې پـه دې زړۀ کېږي
بـدلون ګـورے پـه ژونـد کېـې پـه اسـانه راتلے نۀ شـي
پرېـوځي پـه نـا څـه سـړي تـه ګرانـې پـه دې زړۀ کېږي
شـر خوښـوي دي پـه آمـن چـې زمـونږ نـه خوشـحالېږي
سـاتي د نفرتونـو بلاګـانې پـه دې زړۀ کېږي
ډېـر زړونـه مـې پـه يـو اسـويلي نـرم لكـه مـوم كـړل
د ډېـرو وي ولاړې ګياګـانې پـه دې زړۀ کېږي
زمـونږ غريبانـانو خـو بـس دغـه نصـيبه وي
چې تـولې منصـوبې ګرځـوو وارانې پـه دې زړۀ کېږي

يـه خـورې دا د ګـل هشـنغري زړۀ دے کـه سـرائې ده
دېـره ئـې کـرې بلهـا بلهـا خوبـانې پـه دې زړۀ کېږي





ثمینه قادر

دا څوک جنون نوازه دے ما خوب ته نۀ پرېږدي
د سره مې والله چې سړیتوب ته نۀ پرېږدي

د خان سره په جنګ یمه په خان به خان بانلمه
حالات که مې هر څو دغه نرتوب ته نۀ پرېږدي

د خود خبرې ګرانې وې نو زۀ ترېنه په څنګ شوم
تۀ ګوره اوس مې خلق لېونتوب ته نۀ پرېږدي

پیرې به مې د مرګ خوا ته نزدې کاندي صنمه
دا ښه ده ستا یارې مې بوډاتوب ته نۀ پرېږدي

باران دے د بارودو په هر لور لمبې بلېږي
واړه واړه بچې مې زلمیتوب ته نۀ پرېږدي

د مینې جنګ به کومه که روا که ناروا دے
حالات ګنې بېخي مې مئېنتوب ته نۀ پرېږدي





ډاکټر شاهده سردار

د لمر په سیوري کـه مـې سترګې غزېدلې نـهٔ وے
ژوندونه ستا پـه تبرېدو بـه مـې ژړلـے نـهٔ وے

مـا لویـه وخـت بانـدې د ژونـد سـره وفـا کـړې وه
د دې احساس پـه زنځیرونو کښې تـړلے نـهٔ وے

د هجـر سختو نـه تـر اوسـه لاخبـر نـه اے تـهٔ
ګنې نو تا بـه پـه سپرلي کښې هـم خندلے نـهٔ وے

مـا خـو هـر چـا سـره د زړهٔ پـورې وفـا کـړې ده
دا خـو خبـر دے د دنیـا نـه کړېدلے نـهٔ وے

او اوښکې مې داسې پـه لفظونو کښې پېـرلے نـهٔ وے
کـه دا احساس مـې پـه دردونو لګېدلے نـهٔ وے





ډاکټر صاحبزاده محمد اقبال اقبال

خلق خو ډېر دي خو د کار خلق به ځوک پېژني
دې زمانه کښې د اعتبار خلق به ځوک پېژني

دلته د شمېر خو کسان پاتې دي په دې وطن کښې
حېران په دې يم دا د شمار خلق به ځوک پېژني

هر يو په بېله بېله لار روان دے ځئ به کېږي
د يوې ژبې يوې لار خلق به ځوک پېژني

مينه کښې سر بائيلل د هر چا د وس کار هم نۀ دے
لکه منصور په سر د دار خلق به ځوک پېژني

مونږه مدام د بل په حق باندې داعوې کړي دي
څوک به پېدا شي او حقدار خلق به ځوک پېژني

مونږ همېشه د خر په خاے باندې کولال داغلے
دا بې ګناه او ګنهګار خلق به ځوک پېژني

اقباله ځۀ پرې که يو ته په کښې بينا ئې صرف
ستا برابر ستا د معيار خلق به ځوک پېژني





روښان یوسفزے

دا چې زما اوس لړه لهجه بدله شوې ده
دا مې د یارانو رویه بدله شوې ده

نهٔ کنې یوازې د رهبر سترګې بدلې دي
لار بدله شوې قافله بدله شوې ده

څه بنجارې دلته شیشې رنګ دنداسه مهٔ راوړه
اوس د سنې سترګې پېمانه بدله شوې ده

دا خل په وطن کښې مو دا یو بدلون راغلے دے
دا خل د فقیر لاس کښې کاسه بدله شوې ده

نهٔ استاد بدل شهٔ نهٔ بدل شهٔ د مکتب نظام
څه کـه د ماشوم لاس کښې بسته بدله شوې ده

مهٔ ورځه روښانه هغه کور کلے بدل دے تول
اوس د هغه خلقو رنګ جوسه بدله شوې ده





## ياسين اقبال يوسفزئے

دي خـراب دور کښـې يـو سـتا رضـا ګټـل غوارمــه
د زړۀ پرهـــار ســتا پـــه خـوږه نامــه ګنـډل غوارمــه

زړۀ تــا راکـړے وۀ، منـــن شـۀ ګنهګــار پـه څـۀ شـوم؟
خپـل جانـان راکـړه، نـور والله کـه څـۀ شـے بـل غوارمـه
زړۀ ضـــمير وژنـــم ګنګپـــانو ســـره ژونـــد کومـــه
هلتــه ئــې خدايــه ګــورے اجــر يــو پــه ســل غوارمــه
مـا خـو ژونـد تېـر کړو يـو ارمـان مې پـه زړۀ پرېې نـۀ ښـوده
بـس يـو اخــلاص دے،تجربــې خپلــې ويســتل غوارمـه
کـه مـې بچـي غــوارې تيــارې، پــرې خامخـا خفـه يـم
نــور وس مــې نـۀ شـته ســماه لار ورتــه ښـوول غوارمــه
ښـــکلي جانانـــه عمـــر تېـــر شـــۀ زمانـــه غلـــې شـــوه
راســـره کښـــېنه د زړۀ حـــال درتـــه وئيـــل غوارمـــه
د خپــل ګلشـــن د هــر يــو ګــل پــه مـخ خنـدا غوارمــه
دا درتــه چــا وې؟ چــې ګلچــين يــم ګنــي ګــل غوارمــه

د يوســفزي بــل يــو ارمــان هــم پــه زړۀ پــاتې نـۀ دے
يـــه ســـاده قامـــه تـــا تـــه خلـــق پســـخول غوارمـــه





نواب خان نواب

دغه نڅور د محبت دے یاره
ښائسته اخلاق اصل دولت دے یاره

کل مخلوقات ته چې روزي ورکوي
دغه زما د رب صفت دے یاره

د هسې ناستې نه څۀ نۀ جوړېږي
په حرکت کښې برکت دے یاره

ګوره مظلوم او ظالم نۀ پېژني
څومره ناقصه عدالت دے یاره

د خدا ے له ویرې چې څوک تونې کړې اوښکې
بدله ئې څۀ ده خو جنت دے یاره

دوي ورته نوم د خدا ے د فضل ورکړي
د خدا ے قانون وائي رشوت دے یاره

د نواب زړۀ ئې له مودو اوخوړو
د جهان غم پرې پوخ عادت دے یاره





شاهد علي شاهد

تـر څنګـه راشـي خـو زمـا نـه بې پـروا شـي تېـر شـي
زمـا پـه درد لکـه د خلقـو پـه خنـدا شـي تېـر شـي

اوس چـې يـو بـل لـه دغـه دوه مئـېن پـه مخـه ورشـي
يـه چپـه خُلـهٔ بانـدې يـو بـل تـه پـه ژړا شـي تېـر شـي
بـس صـرف سـتا د يـارۍ غـم راتـه شـل شـوې پـروت د ے
نـور خـو بلهـا بلهـا غمونـه ژونـد تـه راشـي تېـر شـي
پـــه تولـــه لاره د ســـفر د درد تراخـــه اوګـــوتم
او ستا پـه څنـګ کښـې مې وختونـه پـه هـوا شـي تېـر شـي
تـهٔ چـې لـه مـا نـه رخصـت اخلـې خـدا ے دې مـهٔ خبـروه
جانانـه سـم د قضـا وخـت وي خـو قضـا شـي تېـر شـي
د اودرېـدلو تـوان نـې خـتم شـي چـې مـا اووينـي
خولـه خولـه شـي زنګېـدلې شـي سـاه سـاه شـي تېـر شـي

دنيـا بـې نيـازه ده د هېچـا پـه غـم نـهٔ زېرېـږي
شـاهده ډېـر د قـدر وړ خلـق پېـدا شـي تېـر شـي





حبران مومند

لکه شمع بلېدم او څۀ مې نۀ وې
دا خو زۀ ووم سوزېدم او څۀ مې نۀ وې

توره شپه لکه خپسه راخوره وه
زۀ له ډاره رپېدم او څۀ مې نۀ وې
زۀ په دار د درد او صبر اویزان ووم
درنګ ساعت له ورکېدم او څۀ مې نۀ وې
په دې ښار کښې د بلا حکمرانې
لکه بُت به ګرځېدم او څۀ مې نۀ وې
د جنت لټون کښې ډېر قتلونه وشول
زۀ پښتون ووم قتلېدم او څۀ مې نۀ وې
د نا اهله ناکسانو مېنځ کښې ګېر ور ه
بس خو رور رو ژړېدم او څۀ مې نۀ وې

زۀ حبران مومند د زړۀ په درد خوشحال ووم
تا پسې به کړېدم او څۀ مې نۀ وې





## ګوهر علي ګوهر

ما قبول کړې که تهمت دے که پېغور د مينې
خلقو که هر څو لګولې په ما تور د مينې

ډېر که د ښکلو خان رانغاړمه په ډډه تړې څم
زما په زړهٔ باندې قبضه کوي په زور د مينې
دا چې د زړهٔ نه غشے وتے او په وينه سور دے
دا بدلول غواړي دا ښه نهٔ دے انځور د مينې
دا سې ګل رنګه کرونده په دې نړۍ کښې غواړم
شروع خبرې چې شي دلته کور په کور د مينې
د يوسف خان او آدم خان او مومن خان نه روسته
مودې شوې تېرې په چا پورې نهٔ شو تور د مينې
ما خو پرېږده خلقو ته ستا نامه ښکاره نهٔ شي
په خُلهٔ دې نوم اخيستے نهٔ شمه اوس نور د مينې
چې د حجرې نه د رباب منګي اواز وتے دے
کلي کوڅه په چم محلت کښې نشته شور د مينې

لاس په نامه چې نې په در کښې په تعظيم ولاړ يم
ګوهره زهٔ د ربه هېڅ نهٔ غواړم نور د مينې





**ممتاز حسن دولت زے**

سپینې اوښکې تل ګرېوان سره مخ کېږي
هائے ارمان. زما ارمان سره مخ کېږي

سوال جواب که څهٔ وائي څهٔ به وایم
ما د پاره چې جانان سره مخ کېږي

د باران څاڅکي ورېږي رایادېږي
مخاطبه! سود او زیان سره مخ کېږي

د سُر سازه دورانونه در کښې تېر شول
تهٔ د ژوند د امتحان سره مخ کېږې

تېره یاده چې په زړهٔ مې راورېږې
ما ممتاز ته خپل زبان سره مخ کېږې





قیس اپریدے

ناست کـه هغـه ښـکلے رانـه لـرې پـه بـل غـړه کښې دے
مـا نـه لـرې نـهٔ دے راسـره دے زمـا زړهٔ کښـې دے

مـا نـه هېـره نـهٔ شي خـو چـې زهٔ درنـه هیـر نـهٔ شـمه
څـو کـه لـرې لـرې یُـو خـو زړهٔ مـو سـره زړهٔ کښـې دے

څـومره دې تنـګ وکـړو د رقیـب پـه سـر زمـا سـره
ښـه درتـه معلومـه شـوه چـې آ غریـب پـه څـهٔ کښـې دے

ستا د نرګسـې سـترګو کاسـو کښـې چـې چـا څکلـې دي
څوک ئې غورځولي څوک پـه څـه او څـوک پـه څـه کښـې دے

لـه مخـه پلـو واخلـه چـې دا تـوره شـپه شـي سـپین سـبا
خونـد خـو تـول اشـنا ګـوره د نمـر پـه راختـهٔ کښـې دے

بیـا بـه ئـې ارمـان کـوې خـو اوس ورتـه خـان وښـایه
راشـه کـه دیـدن کـوې قـیس درنـه پـه تلـهٔ کښـې دے





جاوېد افګار

يـــوړو قـــرار تـــا ، خوبونـــه نـــهٔ راځـــي
يـــاره پـــه رښـــتيا ، خوبونـــه نـــهٔ راځـــي

کـــتې کښې تـــېر ســـحر څنګونـــه اړوم
شـــوې رانـــه جُـــدا ، خوبونـــه نـــهٔ راځـــي
چـــل د خنـــدا هـــم رانـــه هېـــر شـــوے دے
شـــومه د خنـــدا ، خوبونـــه نـــهٔ راځـــي
دا چـــې طبيبـــانو جـــواب راکړلـــــو
څـــه اوشـــو پـــه مـــا خوبونـــه نـــهٔ راځـــي
بـــاد رابانـــدې تېـــر شـــهٔ يـــا رقيـــب پـــه مـــا
اوکـــړه څـــهٔ بـــلا ، خوبونـــه نـــهٔ راځـــي
کلـــه کلـــه ځـــان بانـــدې شـــکمن شـــمه
شـــوم پـــه چـــا شـــېدا ، خوبونـــه نـــهٔ راځـــي

چـــا تـــه ورنـــزدې شـــم چـــا تـــه اوکړمـــه
زهٔ افګـــار ژړا ، خوبونـــه نـــهٔ راځـــي





اختر حُسين تنگيال

دروغ نــهٔ دي پــه رښــتيا ليــدلے نــهٔ شــم
د چــا ســترگو کښــې ژړا ليــدلے نــهٔ شــم

غــم د خپلــې بربــادۍ راســره نــهٔ شــته
تــا نيمگــړے نيمــه خــوا ليــدلے نــهٔ شــم
داســې يــم د گېــډې غــم پــه مخــه کــړے
خپــل بچــي هــم پــه رڼــا ليــدلے نــهٔ شــم
دا څــهٔ ژونــد دے چــې تــهٔ مــا ليــدلے نــهٔ شــې
دا څــهٔ ژونــد دے چــې زهٔ تــا ليــدلے نــهٔ شــې
پــه يــو ځــاے کښــې پــرې خوشــحاله يــم بــې حــده
خــو پــه بــل ځــاے کښــې خنــدا ليــدلے نــهٔ شــم
ســتا راتلــو تــه بــه اختــر او وايــم مرگيــه
خــو د خپــل ارمــان قضــا ليــدلے نــهٔ شــم

ښــه نــو وايــه څــهٔ بــه روغ شــمه تنگيالــه
پــه گلونــو مســيحا ليــدلے نــهٔ شــم





**حمید هاتف**

تا ویستي د رقیب سره دي جانه تصویرونه
دا خکه سوزوم دې په اور گرانه تصویرونه

پرون د دغه خلقو دبدبه وه په دنیا کښې
دا نن چې ئې وباسي له مکانه تصویرونه
زما په تصویر څهٔ کوې عاجز فقیر سړے یم
څه واخله له بادار او قهرمانه تصویرونه
په دې ښار کښې ژوندي خبرې نهٔ کړي که پوهېږې
په دې ښار کښې زهٔ وینمه گویانه تصویرونه
دا وگوره تصویر د بربادۍ زما د قام دے
پېرزو د ابادۍ کړه په ما خانه تصویرونه
لیدلي مې بلها دي تور مخونه په دنیا کښې
لیدلي مې دي ژوند کښې څو روښانه تصویرونه
عېبونه به خپل پټ کړو په نړۍ کښې له دنیا نه
څو اخلي چې قدرت مو له اسمانه تصویرونه

د ښکلو نندارہ چې د نړۍ په سطحه کېږي
هاتف به ورله لېږي له مردانه تصویرونه





**خان محمد تنها**

هېڅ پښتو او پت مې او نۀ موندو يار کښې
هسې ژوند مې ورسره تېر کړو اعتبار کښې

د خپل رور لاش په اوږو باندې اورمه
تنده غرے مسافر يمه په لار کښې
زۀ ساده ئې په باور د مينې بوتلم
د يوسفؑ غوندې ئې خرڅ کړم په بازار کښې
زۀ د غل او د شوکمار نه يرېدمه
خپل رهبر مې قافله لوټ کړه په لار کښې
د خپل کور د ډيوې دا اور لګيدلے
هم په سوات او پېښور او قندهار کښې
کيجاوه ئې په بدل کښې راته راوړه
د مرام د سرې ډولۍ په انتظار کښې
سر مې سپين، عمر مې تېر شۀ پوې نۀ شوم
فرق مې او نۀ کړو په يار او په تور مار کښې
جماتونه او حجرې مې شوې په وينو
د بارودو د لمبو په دوند کار کښې

ائينه د احساس چا پسې ګرځې تۀ؟
اے تنها! تۀ د ړوندو په دغه ښار کښې





سید مسرور

نوي کال نوو رنګونو سره راشه کنه
زما د زړه د موسمونو سره راشه کنه

بغیر له تا هره لحظه پیکه پیکه تېرېږي
د دې پیکه پیکه وختونو سره راشه کنه
زما د زړه په آئینه کښې ویرانې خوره ده
د خپلو شوخو منظرونو سره راشه کنه
جانانه اوس خو ستا سینه کښې زړه زما درزېږي
د عجیبه کېفیتونو سره راشه کنه
دغه تېر کال خو مې د زړه د ماتېدلو کال وۀ
اوس خو د نوو امیدونو سره راشه کنه
د یو یخنې ده او د زړه پرهر مې څړیکې وهي
د شونډو سرو د ټکورونو سره راشه کنه

ستا په مسرور د هجر ډېرې سوکړې تېرې شولې
لږ د وصال د بارانونو سره راشه کنه





حمید الرحمان نادان

زمـــا ئـــې قتـــل د اعتبـــار کـــړے دے
چـــې د رشـــتې نـــه ئـــې انکـــار کـــړے

پـــــه دې خبـــــره مـــــرور دے جانـــــان
مـــا ســـره خـــوب کښـــې تـــا تکـــرار کـــړے دے

خـــود پـــه جـــامو کښـــې نـــن ځانبړمـــه نـــۀ
چـــا راتـــه وې چـــې چـــا اقـــرار کـــړے دے

آئینـــه زور نـــې نـــن زغملـــے نـــۀ شـــي
جانـــان ســـاده ســـنګار کـــړے دے

پـــردو نـــادان لـــه همـــېش لاس ورکـــړے
خپلـــو یـــارانو تـــرې فـــرار کـــړے دے





## علي رحمان چراغ

چې په سر ئې د شفقت وي د پدر لاس
کله هم نه رسوا کېږي د پسر لاس

خواست د خدا ے له دره کانده که محتاج ئې
هسک دې مهٔ شه التجا ته په بل در لاس
بادشاهت د دې دنیا د ے څهٔ نیمګړ ے
خالي لاړو په مرګي د سکندر لاس
ذولفقار د چا فاسق په لاس کښې مهٔ شه
توره غواړه د علي او د عمر لاس
د دې دور په نظر ماتم پکار د ے
چې نهٔ پېژني د خېر او نهٔ د شر لاس
جواري د ښلتانهٔ وه یار مې بائېله
همېشه لره وي تش د جوارګر لاس
یو هېبت په ما طاري شي ستا په خوا کښې
زهٔ ؤ تاته درور ے نهٔ شم زړور لاس

د چراغ سره ئې مینه ده څو سوزي
له دې یرې نه مې نهٔ ږدوي په سر لاس





انجنیئر جهانګیر جنون افریدي

په کیف د بې چینۍ کښې بوږنېدلې غونډې یم
هر څو که خپل منزل ته رسېدلې غونډې یم

زۀ ستا د برند نظر د تسلۍ لرم امکان
اشنا جوړ التفات دې رابللې غونډې یم
یو شور د محبت مې دے باطن کښې موجزن
هر څو که په ظاهره باندې غلې غونډې یم
د امر بالمعروف د پرمختګ په لور شاید
د خوبه د غفلت راپاسېدلې غونډې یم
خاموش په خان کښې ورک یمه په شان د هدیرې
په مخ د زمانې د خاورو ځللې غونډې یم
بېګاه دې چې په خوب کښې رابللې ووم اشنا
په تال دې جوړ د فکر ځنګېدلې غونډې یم

ناصحه غصه وکړه زۀ په خود نۀ ووم جنون
په زلفو زنځیرونو ئې تړلې غونډې یم





عدنان احساس

ریخې ریخې مې ترې ګرېوان راتول کړو
ذرې ذرې مې خپل ارمان راټول

مخ له ئې نور د خپله نوره ورکړو
چې فریشتو کله انسان راتول کړو

هر خواته ګوره د دجال فتنه ده
ما ښه په ګرانه خپل ایمان راتول کړو

چا وئیل اوس درته یادېږي کنه
ما وئیل اوس مې ترې نه ځان راتول کړو

ویش د خندا اور خوشحالو چې کېدو
احساسه ما ترې نه خفګان زاتول کړو





حمید وصال

تــه چــې دوي تــه شــې نــزدې زه پرېشــان شــم
د ملګـــرو پـــه نیتونـــو بـــدګمان شـــم

محبـــت د انســـاني فطـــرت خاصـــه ده
یـوه موقعـه مـا لـه هـم راکـړه چـې انسـان شـم
د تـا غـم مـې لـه روزګـاره لاس اوښـکلي
هسـې نـه چـې چرتـه بـوج پـه خپـل خاندان شـم
وایـم څـوک لـه فرشـتو هـم خفـه کېـږي
تـا چـې اووینـم خفـه پـه خپـل خفګـان شـم
ضـروري ده چـې د تـا زړګـے تسـخیر کـړم
ضـروري نـه ده چـې هـر چـا تـه دې ګـران شـم
خپـل منـبن پخـلا کـول تـا لـه کـوم ګـران دي
تـه راوخنـدا تـش زه بـه در روان شـم

تشـنګي د محبـت مـې لاسـوا شـي
د وصـال نـه پـس دې لا هـم پـه آرمـان شـم





رحاب ملک

په ګرمو ګرمو اوښکو ګړېوانونه سوځېدل
د سترګو آئینو کښې تصورونه سوځېدل

حالات لکه د اور هسې چاپېره وو رابل
د روح مې پکښې واړه اندامونه سوځېدل
باران پرې په شبو شبو د سترګو ورېدهٔ
ډېوې کښې د زړګي چې ارمانونه سوځېدل
بیا راغللې د عمر د یادونو قافلې
تازه مې شول په زړهٔ باندې زخمونه سوځېدل
ژوند بیا کړمه راپېښه د قسمت په هغه لار
چې زمکه د تامبې وه اسمانونه سوځېدل
راوتې ترې لفظونه وو د اور د لړېدو
د ژبو په اورنو کښې سرونه سوځېدل

راوړي وو سپرلو کښې د رحاب سره اورونه
غوټۍ وې سوې لوې تول ګلونه سوځېدل





محمد علي صابر

چې خُلۀ هر يو انسان لره راحت دے
په سپړدلې خُلۀ کښې هر وخت مصيبت دے

د تنزري حال ته ګوره که دانا ئې
د ښکاري په چال کښې ګېر له خپل عادت دے
عاجزي به دې هر چا وته قبول کړي
له غروره په شيطان باندې لعنت دے
که د منډې زور دې نۀ وي خه په رو رو
د مېږي په چال کښې څومره برکت دے
په غرمه کښې هغه سوري لاندې ملاست دي
چا چې کړے په سحر کښې حرکت دے
چې يوه ګوته تۀ بل په لوري نيسې
د څلورو ګوتو تا ته اشارت دے

د زبرګانو په محفل کښې چې ناستے کړي
ما صابر باندې د لوے الله رحمت دے





ساجد اعوان

د يـــــارنې تهمـــــت پـــــه ســـــر وورمـــــه
د وفـــــا پښـــــتې پـــــه هنـــــر ورمـــــه

خپـــل بـــه پـــه خپلـــو کښـــې محفلـــې کـــوي
زۀ د پـــــردو خـــــوا لـــــه اختـــــر ورمـــــه

چرتـــــه چـــــې ســـــوزخې رڼاګـــــانې د ژونـــــد
هغـــــه لمبـــــو لـــــه خپـــــل نظـــــر ورمـــــه

زمـــــونږ رقيـــــب ببګـــــا د ملکـــــه ورک شـــــۀ
يـــــار لـــــه بـــــه دا زېـــــرے ســـــحر ورمـــــه

پـــــه يـــــار ئـــــې تـــــورې خـــــاورې پرېـــــوتلې
خمـــــه ســـــاجد لـــــه دا خبـــــر ورمـــــه





عابد ثمر اپریدے

څـهٔ جـادو دې کـړے دے پـه مـا بانـدې
زړه دې رانـه وړے پـه خنـدا بانـدې

یـاره صـفا اووایـه شـرمېږه مـه
وریـت دې پـه لمبـو کـړم پـه جفـا بانـدې

زهٔ درپسـې ځیـرې ګرېـوان ګرځمـه
عمـر مـې تېرېـږي پـه ژړا بانـدې

دربغـه چـې نصیب مـې شـي د یـار مینـه
نـهٔ کـوم بـاور نـې پـه وفـا بانـدې

زلفـې پـېچ و خـم کـړه پـه رخسـار ګلـې
سـمه سـودا راکـړه پـه سـودا بانـدې

څـه د زمـانې د سـتمونو نـه
څـهٔ کـوې ثمـره پـه دنیـا بانـدې





افتخار ساحل

د حُسن خدای ته د وجدان په تنارهٔ ولاړ یم
دلته هم زهٔ ووم سوځېدم، هلته هم زهٔ ولاړ ووم

ستا د محفل نه د وتلو کېفیت تو به
نهٔ دې د غېږې نه روان وومه، او نهٔ ولاړ ووم

تا نیت ترلے وهٔ کعبې ته راز او نیاز دې کوو
او زهٔ دې مخې ته د مخ په نمر خاتهٔ ولاړ ووم

ګڼو لاسونو مې د فن آبرو ریزي کوله
دې تماشې ته مې په چپه خُلهٔ کاتهٔ ولاړ ووم

ساحله خاورې څه چې دورې قدرې هم نهٔ شومه
خپل حسرتونه مې د پښو لاندې کېدهٔ ولاړ ووم





مراد علی مراد

زړهٔ مـــې د وبیـــرې د قیامـــت څـــه علامـــه خـــو نـــهٔ ده
هغـــه چـــې مـــا کـــړې ګنـــاه وه دا هغـــه خـــو نـــهٔ ده

چـې تـه پـرې هـم کـوې بـاور او سـتا پـه لاره نـهٔ ځـي
لار ئـــي کـــړ، ده نیغـــه نـــه ده فرښـــته خـــو نـــهٔ ده
د ژونـد پـه زغـل کښـې د تنـدي پـه پښـو مـزل کوومـه
زه سـتړے شـوے نـهٔ یـم مـا کـړې دمـه خـو نـهٔ ده
نیست و نابود بـه مـې کړي او کـه نـه زرغـن بـه مـې کړي
چرتـــه کـــم اصـــل ســـره مـــا کـــړې رشـــته خـــو نـــهٔ ده
ســـتا پـــه لهجـــه کښـــې د غـــرور ترخـــه نشـــه پرتـــه ده
نـن سـاقي هـم وئیـل چـې دا نشـه خـوړه خـو نـهٔ ده
پـه زړهٔ مـې پـروت پنـد د غمونـو دے خـو لار لنـدوم
مـا تـه پـه لار کښـې مسـله پرتـه یـوه خـو نـهٔ ده
تـهٔ خپلـه برخـه رزق خـوره زه بـه هـم خپـل رزق خـورم
بغیـر لـه خدایـه مـې پکـار بلـه اسـره خـو نـهٔ ده
سـتا حسـن لـوے دے مـا د عشـق تـر مرتبـې رسـوي
زهٔ یـم عـاجز زمـا څـه لویـه مرتبـه خـو نـهٔ ده

لیلـیٰ کـه تـوره وه مجنـون تـه پاغونـده ښـکاریده
مـراد هـم ګـوري محبوبـه چـې پاغونـده خـو نـهٔ ده





## ظهیر جتانوي

ما ویل چې ساه مې په وتو شوه ویل ئې مۀ خه رانه
سترګې ئې سرې شوې په سلګو شوه ویل ئې مۀ خه رانه

ما ورته ویل چې درنه خم راته دعا کوه بس
اوف سمدستي راته په پښو شوه ویل ئې مۀ خه رانه

ما چې ګیله د بې غورۍ ورته شروع کړه کله
راته ناڅاپه په توبو شوه ویل ئې مۀ خه رانه

یوه لحظه ئې اوښکې اوساتلې سترګو کښې خو
بیا په ژړا شوه په نعرو شوه ویل مۀ خه رانه

کله به یو طرف ته لاړه کله بل طرف ته
لکه په شان د لېونو شوه ویل ئې مۀ خه رانه

ما چې رخصت ترې اخیستو یوه نعره ئې اوکړه
ګرځېده په رېبدو شوه ویل ئې مۀ خه رانه





پهلوان شاه سیاوال

دا څـــه دي چـــې پـــه تنـــده مـــې رنـــا وي همېشـــه
تيـــارو کېنـــې مـــې د زړه ډوبـــه دنيـــا وي همېشـــه

مجـرم تـه ازادي وي زمـونږ شـهر نـه پرسـان کېنـې
پـــه لاس کېنـــې هتکـــړې د بـــې ګنـــا وي همېشـــه

افسـوس راشـي واکـداره چې تـا اوګـورم خوشـحال
پـــه سـترګو کېنـــې د نـــور اولـــس ژړا وي همېشـــه

غريـب سـړي تـه څـوک ورځـي پـه وخـت د مصـيبت
غريـب سـړے پـه کلـي کېنـې تنهـا وي همېشـه

مـونږ کلـه تسـليم کـړي چې غيبـت کـول عـذاب دے
زمـــونږه خـــو پـــه خُلـــهٔ دغـــه وبـــا وي همېشـــه





حاجي محمد جان جهانګیر

ستا په ترس نظر د لرې لرې نه
غوخ مې شهٔ خیګر د لرې لرې نه

هر څوک دي خبر زما د مینې نه
نهٔ بېبري نمر د لرې لرې نه

سترګې چې مې تا رقیب یو ځای ویني
شي په اوښکو تر د لرې لرې نه

زهٔ درتلم دیدن له چې تا اولیدم
بند دې کړلو ور د لرې لرې نه

ما درته جهانګیر یو څو ګیلې اوکړې
تا ترې جوړ کړو غر د لرې لرې نهٔ



# نظم

حيات اقبال حيات

زمـــا ښـــرغ زمـــا پـــتـکي دے بابـــا
زمـــا پـــتـکي زمـــا کـــالي دے بابـــا
د خپـــل ښـــرغ پـــه قـــدر نـه پـــوهېږي
تويـــه تويـــه دا کـــوم ســـر دے بابـــا
زمـــا غـــزل زمـــا ټپـــه کښـــې اوســـي
ښـــرغ جانـــان ښـــرغ لالـــے دے بابـــا
زمـــا ښـــرغ لکـــه د نـــاوې پـــه څېـــر
لکـــه ګـــلاب لکـــه ســـپرلي دے بابـــا
زمـــا ښـــرغ زمـــا د زړه پـُــه حســـاب
زمـــا وجـــود تـــه رانـــزدې دے بابـــا
هغـــه پښـپـــل ښـــرغ چـــې تنـــګ نـــه کـــوي
هغـــه روغ نـــه دے لېـــونے دے بابـــا
د خپـــل ښـــرغ پـــه ســـيوري ژونـــد کومـــه
بلهـــا خـــوش بختـــه مـــې تنـــدے دے بابـــا
زمـــا ښـــرغ تـــه د چـــا زړه ښـــه نـــه دے
دغلـــيم ســـترګو کښـــې ازغـــے دے بابـــا
پښـپـــل ښـــرغ بـــه خپـــل ســـرونه شـــيندي
د وطـــن پښغلـــه کـــه زلمـــے دے بابـــا
زمـــا ښـــرغ زمـــا د قـــام نخښـــه ده
زمـــا ښـــرغ د قـــام غمـــے دے بابـــا
څـــوک بـــه زمـــا ښـــرغ تـــه ټيـــټ وګـــوري؟
حيـــات لامـــر نـــه دے ژونـــدے دے بابـــا

*

# اختلاف

فېروز افریدے

نوع مو یو دے خو د زړونو اختلاف دے
زمونږ دواړو د فکرونو اختلاف دے
هوډ مو یو دے جد مو یو وطن مو یو دے
خو بیا هم د نظرونو اختلاف دے
ته د جسم ازادي غواړې چې عام شي
ستا زما د معیارونو اختلاف دے
ته باغي له روایاتو زهٔ پابند یم
بس هم دا د اقتدارونو اختلاف دے
ستا دنیا د عېش مقام زما ازمېښت ده
دا زمونږ د هدفونو اختلاف دے
زهٔ قائېل د عقیدې ته د تشکیک ئې
دا زمونږ د ایمانونو اختلاف دے
ستا د خیال په آزادۍ باندې یقین دے
د پابند ازاد خیالونه اختلاف دے
ستا لوئي او زما خوښه فقیري ده
دا زمونږ د مزاجونو اختلاف دے
ما د خدائے په درست نظام ایمان راوړے
ستا د خدائے په نظامونو اختلاف دے
مرګي بس موافق دے یار فېروزه
نور په ټولو مظهرونو اختلاف دے



# بل جهان

اطلس ګل اطلس

چې نـه پکښې ځـه ویـره او نـه ترهـه نـه دهشت وي
یـو بـل نـه زاریـدهٔ وي هـر خـوا مینـه محبت وي
هـر یـو سـړے امـین وي اه جرچـې د صـداقت وي
چې هـر څـوک ښـهٔ خوشـحاله مـاحول د یـو جنـت وي

بـس زړونـو تـه سـکون وي او ژوندون پکښـې آسـان وي
اے خدایـه درنـه غـواړم کـه سـتا بـل داسـې جهـان وي

چـې هـر خـوا چمنونـه سـرهٔ ګلونـه وي بهـار وي
باغونـه د مېـوو وي ونـې بـوټي وي قطـار وي
د شـنو اوبـو سـیندونه وي نهرونـه تـرې بـې شـمار وي
څـادر د زېـړ ګلونـو پـه پټـو خـور وي سـنګار وي

چې هـر خـوا تـه سـپرلي وي لـرې لـرې تـرې خـزان وي
اے خدایـه درنـه غـواړم کـه سـتا بـل داسـې جهـان وي

چینـې وي ابشـارونه وي یـو سُـر وي یـو آواز وي
نغمـې خـورې پـه شـونډو ورسـره د ربـاب سـاز وي
مسـتۍ وي او خـوانۍ وي د مئینـو زړونـو راز وي
د ونـو پـه ښـاخونو د چرچټـو راز و نیـاز وي

چـې نـهٔ وي تصـوّر د رقیـب، هـر ښـکلے جانـان وي
اے خدایـه درنـه غـواړم کـه سـتا بـل داسـې جهـان وي

ناحقه چې غندي او هم په ځُلو حقه وهنا وي
خوږې خوږې خبرې هم دردمند زړه له دوا وي
رهبر د کړو لارو وي رند و له ره امسا وي
چې هره پېغله تېته نظر وړي ژوند حيا وي

چې نه غلط فهمي وي نه څه شک او نه ګمان وي
اے خدايه درنه غواړم که ستا بل داسې جهان وي

د عدل او انصاف تر مخه ښکلے يو نظام وي
سجدو له ره چې بس يوه کعبه وي يو امام وي
چې ښکار وي د ښکاريانو خو نښته او نه دام وي
يو دود وي يو دستور وي يوه ژبه وي يو قام وي

د عدل او انصاف تله درنه مې په هر آن وي
اے خدايه درنه غواړم که ستا بل داسې جهان وي

چې نه چرته بارود وي او نه چرته د هندوکار وي
چې امن وي سکون وي ټول ماحول قرار وي
نه جرم نه سزا وي نه تخته وي او نه دار وي
تيارې د جهالت نه وي د علم اقتدار وي

چې ستا وحدانيت منې په تا ئې بس ايمان وي
اے خدايه درنه غواړم که ستا بل داسې جهان وي

چې نـه په قومیت نـه پـه مـذهب کښې اختلاف وي
چې نـه د چا پـه نسـل او نسب کښې اختلاف وي
چې نـه چرتـه رتبـه او نـه منصب کښې اختلاف وي
چې نـه چرتـه اطلسـه پـه ادب کښې اختلاف وي

چې هـر څـوک ادب ذوقـه وي د یـو بـل قـدردان وي
اے خدایـه درنـه غـواړم کـه ستا بـل داسې جهـان وي



# پښتانهٔ

سید ګران باچا ګران

د ضد په لاره کله چې دي تلي پښتانهٔ
واپس په دغه لار نهٔ دي راغلي پښتانهٔ

منمه نور قامونه پخپل ځاے د قدر ور دي
خو وخت د سربازۍ کښې دي وتلي پښتانهٔ
تاریخ ورله ورکړے ځاے د خپل زړګي په کور کښې
تر اوسه نې دې زړهٔ پورې نیولي پښتانهٔ
د پت ښبګړې تورې تنګ په تورو برابر دي
هر ځاے جګه شمله ساتي ښاغلي پښتانهٔ
په بل وطن کښې هم د خپل وطن سندرې وائي
د خپل همت په زور غر ته ختلي پښتانهٔ
بغیر د خپل الله نې چا ته سر نهٔ دے ټیټ شوے
ایمان یقین محکم لري کوتلي پښتانهٔ

ډېر ورک شو رانه ګرانه د بارودو په لوګو کښې
غمو او د لعلونو په شان ښکلي پښتانهٔ



# د مېرمنو عالمي ورځ

محمد جبار جبار

ښځه پېدا کړې خدای ښائست د هر کور ده
ګوره چې جنت ئې د پښو لاندې دے نو مور ده

اے وروره حقداره دې په مال کښې لور او خوږ ده
ولې توره کړې دې په ژوند کښې په هر تور ده

ښځه ملاله ده مېدانو نه ئې ګټلي دي
واړه دښمنان ئې د دې خاورې نه شړلي دي
څنګه ئې زلمي د جنګ مېدان ته تنګولي دي
څومره اتلان چې د وطن دي دوي روزلي دي
څنګ په څنګ ولاړه په مېدان کښې د خپل ورور ده
ولې توره کړې دې په ژوند کښې په هر تور ده

مونږ اکثر ورکړې خپل دښمن له په سوره کښې وي
وایو ښځه کور کښې دې وي یا دې مقبره کښې وي
دوي سره زیاتے د پښتنو په معاشره کښې وي
تل بې اسرې شوې په اسره اسره اسره کښې وي
لور خور د سړي ده که لور خور د سړي خور ده
ولې توره کړې دې په ژوند کښې په هر تور ده

خـدا ے پـه ښائسـته ښـځو ټـولنې کـړې رنګینـې
ټـولې ښائسـته دي کـه څـوک تـورې دي کـه سـپینې
هـر چرتـه چـې وي خـو ښـکاره نخښـهٔ ده د مینـې
دوي بـوټي د ژونـد لـه همیشـه ورکـړې وینـې
ولـې ګرځـولې مـونږ حقـداره د پېغـور ده
ولـې تـوره کـړې دې پـه ژونـد کښـې پـه هـر تـور ده

ښـځې لـه ورکـړي پـاک الله څـو منصـبونه دي
مـور ده، خـور ده. لـور ده ځانلـه ئـې نومونـه دي
ده چې پـه کـوم نـوم هـم نـو پـه سـر ئـې شـل عارونـه دي
تـل ئـې ټوکـولي پـه ژونـدون کښـې سـرهٔ ګلونـه دي
اوګـوره جبـاره چـې هـم خوابـې هـم اینګـور ده
ولـې تـوره کـړې دې پـه ژونـد کښـې پـه هـر تـور ده



## آزاد نظم

فضل محمود روښان

ما د ادب په سمندر کښې
لامبو وهله
خان مې
پورې ایستلو
خو زۀ خبر نۀ ووم
چې د ادب سمندر
څومره ژور دے

*

# چاربېته

## کالداره

همایون شاهین

اتهٔ وو اتانیزه    څلور څلور انیزه
د شپاړس و انو نه جوړه دغه یو روپۍ
کالداره د چاندۍ وه

آنه کښې دوه ټکې وې    ټکه کښې دوه پیسې وې
یو آنه وه غټه، بله یاده په ګنجۍ وه
کالداره د چاندۍ وه

څلور شپېتهٔ پیسې وې    روپۍ کښې د مزې وې
یو زېړه به پیسه وه بله مینځ کښې به سورۍ وه
کالداره د چاندۍ وه

پیسه کښې ادهېلې وې    د هغه زمانې وې
آنه باندې بګۍ کښې آدینه ته به سورلۍ وه
کالداره د چاندۍ وه

کالدار ښهٔ درنه وه    په وزن کښې توله وه
هر څهٔ به پرې کېدل که به مېښه ګوندلۍ وه
کالداره د چاندۍ وه

ارزانه ارزانۍ وه    د زړونو خوشحالي وه
ابۍ به باندې کړې د پېټۍ ډکه کټوۍ وه
کالداره د چاندۍ وه

ـــــاده وو خوراکونـــــــه کـــــــوتلي وو وجودونـــــــه
پرېمانـــه بـــه ګلـــه وه د اوربشـــو بـــه ډوډۍ وه
کالـــداره د چانـــدۍ وه

ـــوپې وې تهبلـــــداري پښــــــې وې چغبــــــداري
د ښـــځوو بـــوټې نـــۀ وې يـــوه غتـــه بـــۍ کمځـــۍ وه
کالـــداره د چانـــدۍ وه

کـــور کښـــې نـــۀ لېتهـرين وۀ پـــــه خلقـــــو آفـــــرين وو
د کـــوهي ســـره بـــه خـــوا کښـــې د لامبلـــو چونيـــانۍ وه
کالـــداره د چانـــدۍ وه

نـــــه مرمـــــورۍ وه بېشـــــانه بـــــه خـــــورېه وه
د کلـــي پـــه يـــو چـــم کښـــې د هنـــدو بـــه يـــو هټـــۍ وه
کالـــداره د چانـــدۍ وه

ن اوګـــوره مـــاړه شـــو دا خلـــق ســـړي خـــواره شـــو
پـــه هغـــه وخـــت کښـــې کويـــت نـــۀ ســـعودي او نـــۀ دوبـــۍ وه
کالـــداره د چانـــدۍ وه

ـــاهينه پښـــــتو لاړه ځـــۀ ورانـــه شـــوه ويجـــاړه
پلبـــټ پـــه انګرېـــزۍ کښـــې شـــۀ پخـــوا بـــه رکېبـــۍ وه
کالـــداره د چانـــدۍ وه



# علامتي چاربېته

نثار محمد نثار

ستا او زما روغه شوه کونترې ته وې باز
خونه د تپوس په اتفاق به کړو ویجاړه

کونترې ووې ښه ده برادره خان خبر کړه
زما دې څو شرطونه قبولې به په میدان
طوطي د پنجرې بار دے خو ده معر ئې بهر کړه
بیا چې دوباره ئې ګورے نه کړې بندیوان
زړې غلطۍ همه واړه ئې عفو درګزر کړه
دا به دې مننه وي په ما به وي احسان
هله به زۀ ستا او تۀ زما به ئې همراز
ستا او زما روغه شوه کونترې ته وې باز
باز ووې ازاد دے هم بخښم ئې ګناه واړه
خونه د تپوس په اتفاق به کړو ویجاړه

کونترې وې دا شرط مې آخري دے وایم حال
ژاله د تپوس ورانه کړه صبر مۀ کړه نور
اخلمه بدل زۀ دا مې نیت دے دا مې خیال
کمزورے خو تۀ نۀ ئې ورته ونښایه خپل زور
تادې کوه زر پاسه یو ذره نۀ شي اتهال
دا دنیا د دۀ نۀ ده جهان کړه پرې نسکور
اتۀ ګزاره ورکړه باز په لمسه د غماز
ستا او زما روغه شوه کونترې ته وې باز
هغه کار ئې اوکړو چې کونتره وه پرې لاړه
خونه د تپوس په اتفاق به کړو یجاړه

تپوس ئې کړو بې ژالې او ستم پرې اوشهٔ نور
ملګرو ته حېران شهٔ وائي ډېر ښکلي باغیان دي
بل ملا چرګک د خوشحالۍ نه ګډ کړو شور بیا
زړهٔ مې دے خوشحاله تقسیم شوي تپوسان دي
د باز په حمایت کښې اعلان وکړو حرام خور بیا
لرې کړه د مخې دې تنزري که زرقان دي
نهٔ کوي جرات چې د په وړاندې د پرواز
ستا او زما روغه شوه کونترې ته وې باز
ستا به غلا مې کوي کارغهٔ وي که خراړه
خونه د تپوس په اتفاق به کړو ویجاړه

تپوس چې شهٔ ناکامه نیت ئې وکړو د سفر
مخ ئې وهٔ مغرب ته اباسین ئې کړلو پار
دلته کښې شاهین ته وو د مخکښې نه خبر
هغه د ناکامه شهٔ ورپوري په تلوار
کلک په اتفاق سره ئې دا اوکړو اقرار
د باز د غورزولو به کوو دې خاے نه اغاز
ستا او زما روغه شوه کونترې ته وې باز
نشاره مخکښې څهٔ کېږي اوس خبر له ربه غواړه
خونه د تپوس په اتفاق به کړو ویجاړه





نازیه دراني

حُسن پرست په حُسن مړ وي عبادت ئې کوي
د ناجائزو خواهشاتو اطاعت ئې کوي

څهٔ کېفیات د زړهٔ په دشت کښې په غضب اخته وي
د ذهن توري په کاغذ تل شکایت ئې کوي

هغه که هر څومره مغروره دے باغي دے له ما
خو هر ارمان مې لېونے شي ضمانت ئې کوي

مونږه احساس لرو احساس سره ژوندون تېروو
جذبې مو په یو دوه کښې سوا شي مروّت ئې

د جرم هر اړخ ښکاره شي بې پردې شي اخر
حق چې ګویا شي ملګرتیا تل صداقت ئې کوي

ناز په ګیلو په چغو کلېه معمې حل کېږي
ښکاره خو ده چې استحکام استقامت ئې کوي





لطیف الله ابمل

مـا لـه سـلگی راخـي جانانـه د سـلگو د پاسـه
اوښـکې روانـې دي بهيـږي د لبمـو د پاسـه

ذرې ذرې ئـې کړمـه والوتمـه مينـې د يـار
لکـه سـيلۍ چـې راتېـره د ايـرو د پاسـه

تـا بـه راوړل مـا بـه خـوړل څـومره مـزه پکښـې
سـره ډوډۍ د پيـاز نـه چـک يخـو شـوملو د پاسـه

گرځـوان مـې څيـري تـر لمـن شـۀ لېـونے ئـې کړمـه
بـس اوس دې نـۀ کـوي دعـا راتـه ښـېرو د پاسـه

چـې تـر پـرون پـورې وو تيـټ ولاړ زمـا پـه مخکښـې
هغـه نـن نېـغ څنگـه راخېـژي پښـتنو د پاسـه

چـې سـتا تـر څنـگ ايملـه زۀ د خـوب خوبونـه ويـنم
لکـه محـل چـې جوړومـه د اوبـو د پاسـه



## نعت سرورِ کائناتؐ

صوفی عبدالرشید

ایہہ جتنا سلسلہ سنسار دا اے
سبھے صدقہ مری سرکار صدا اے

جیہڑے نسبت نبیؐ دے نال رکھدے
خدا بیڑے انہاں دے تار دا اے

حیات اس دی دوام اس دا اے جیہنڑا
انہاںؐ تے جان اپڑیں وار دا اے

مری قسمت غلام اس دائیں ہو واں
جہینڑا دربان اس دربار دا دے

نہ مانہ حاصل زبان کعبؓ و حسانؓ
نہ لہجہ رومیؒ وو عطارؒ دا اے

میں آکھاں نعت جیوں نعت بصیریؒ
سلیقہ مانہہ کتھوں گفتار دا دے

ابوبکرؓ و عمرؓ عثمانؓ و حیدرؓ
برابر مرتبہ ان دا اے

اوہ راضی حق توں اس توں اے راضی
وڈا رتبہ نبیؐ دے یارؓ دا اے

*

## میرے خواباں دا شہر مدینہ

اورنگزیب احمد غزنوی

تمنا کہئی میری اے کراں دیدار مدینہ
دکھا دے میرے مولا تو منوں گلزار مدینہ

ایوائی تا ابتداء سی بس رئی اے آرزو میری
کدو میں چشم نم نال دیکھ ساں دربارِ مدینہ

جھتے روضہ دے آقاؐ دا اے اوہ مقام اعظم اے
میرا دل تے میری جاں ہووے بس نثار مدینہ

منوں دِکھلا دے یا رب ذوالجلال اوہ روضہ اقدس
کہ بس یاد آندا رہندا وے اووئی دیارِ مدینہ

کدو اس زیب تے تیرا کرم ہوسی میرے مالک
کدو خواباں دے وچ میں ویکھساں سرکارِ مدینہ

تمان کہئی میری اے کراں دیدارِ مدینہ
دِکھا دے میرے مولا تو منوں گلزارِ مدینہ

*

# سوری

پنجابی افسانہ

ڈاکٹر عادل سعید قریشی

ساڈی پہلی محبت دے زخم دی تازگی داماہ بی اس ویلے پتا چلیا جدوں ہن آپنڑے پھانجے دے ولیمہ تے ساں ۴۵ سالاں بعد وچ بیٹھاں۔ میں آپڑی زندگی چنگی بھلی لنگا چھڑی ای، اس محبت دا خیال بی آندا سندا ایہا پر میں اس محبت آن پچھلے دا ای ایہاں۔ محمد دے ولیمے تے جس ویلے میں اندر بہوٹی نال فوٹو کڈھائڑے اسٹے گیاں تے اگے لال جوڑا لائے اوہ کھلتی دی ماہ دس گئی۔ اگر جے اساں دوہاں ہکی دے آں نالو نال نہ دیکھیا ہونداں تے اللہ دی قسمے میں سیانڑ کے بی اساں نہ سیانڑ داتے اس کولوں نظر پا جلدا، ایہہ آکھ کے کہ صاف اس نالوں اے کوئی اُوہ۔ پر اس دی تے میری نظر کھونال کے دوئے تے پئی۔ میری جدوں اس تے نظر پئی تے اوہ پہلے توں ماہ دیکھدی ایہی، جس ویلے نظراں چار ہویاں تے دوویں ٹاٹرے رہ گئے آں، کوں جے اساں ہی نہیں ہکی دوئے آں سیانتا بلکہ اساں ہدیاں ولاں بی ہلی دوئے آں سیانڑ کدا ایہا۔ میں فربی دلے آں آکھیا ضرور کہ جنڑیا ایہہ صاف اس نالوں اےئی، پر دل باتے میرا ہی کج لگدا ایہا ہسیا تے آکھنڑ لگیا، اس نالوں نئی پہالہ! اوئی ای ہیوے۔ بس فرتے میں اُتھے ہی جل کھلتاں، جتھے میں ۴۵ سال پہلوں اساں دیکھیا ایہا۔۔۔۔ اس شادی ہال بچ پچے دا شور شرابہ آپو آپ ہی مک گیا، جنجو سارے لوک ٹکرا کھانڑے آں لگ گئے ہوون، اساں دے پنجتالی سالاں بعد ملنے دی حرام ہوے کدے کسی کیڑھ کدی ہوے یا کسی آکج خبر بی ہوئی ہووے کہ ای اج مل گئے آں۔۔۔ ظاہرا اے میں ستر سالہ بابا اور اوہ پینٹھ شینٹھ سالہ بڈھی ماسی تے کونڑں نوٹ کرے آ۔

اس دیاں اکھیاں اج وی انجو ہی چمکتیاں ایہایاں جنجو اس ویلے انہاں ماں پاگل کر کدا ایہا۔ اج سرے دی جائی مسکارہ پیا مسکدا ایہا، میرے مامے دی تیہیو دا بیاہ ایہا تے میں بیاہ دیا کماں ال لگے دا ایہاں۔ کاکولاں دے پانڑیے دے کال دا کساں پتا نہیں تے میں مڑماں جو گے پینڑے دا



Scanned by CamScanner

